# سوات نامه

د

خوشحال خان خټک

مقدّمه، تحقيق او سمون

همیش خلیل

مرکزي خوشحال ادبي و ثقافتي جرګه (رجسټرډ)

اکوړه خټک

خورونکے ——— مرکزی خوشحال ادبی ثقافتی جرگه اکوړے

مطبع ——— شرکت پرنٹنگ پریس چوک نسبت روډ لاهور

کاتب ——— نواب خان

اشاعت ——— اکتوبر سنه ۱۹۸۶ء

طبع ——— دوهمے ځل

تعداد ——— یو زر

بیعه ——— ۲۰ شل روپۍ

# یو خوشخبرے

دا کتاب یعنی "سوات نامه" دَ مرکزی خوشحال ادبی و ثقافتی جرګے دریم پیشکش دے، چه قوم ته ئے سوغاتوی. دغه نه وړاندے "په خوشحال خان خټک دیو تنقید باز ګشت" او "جشن خوشحال" په نومونو دوه کتابونه هم دَ جرګے له خوا چاپ شوی دی، چه دَ ادب تړو به ورباندے ښه تنده ماته کړے ری او قوم اکثریت به ترے نه هم اُمید دے استفاده کړی وی. دغه نه پس "دَ خوشحال د بترکُلونه" هم انشاء الله ډیر زر چاپ کیدونکے دے چه دَ خټک نامے د کهنرو شاعرانو منظُوم کلام دے.

"سوات نامه" لکه چه څرګنده ده. دَ خوشحال خان خټک هغه ادبی شهکار دے چه د سوات دَ دورے په اوان کښے ئے لیکلے وه. ددے کتاب چاپ کوونه دوخت دیو اهم ضرورت له مخه مونږ خپل نور ادبی فعالیتونه پښا کړهٔ. او ددے اشاعت ته مو اولیت ورکړو. جرګه دَ مُحترم همیش خلیل عموماً دَ هغو ادبی کوششونو اعتراف کوی چه هغوئ ئے دَ تیرو دیرشو کالو راسے په پوسر دَ ذرائعو د نیشتوالی باوجود په خورا ډیر انهماک سرته رسوی. خصوصاً په خوشحالیاتو چه موصوف په لږه موده کښے کوم کار وکړو. جرګه دَ هغے هم منته کوی.

فضل اکبر سیلاب

صدر

مرکزی خوشحال ادبی و ثقافتی جرګه (رجسټرډ) اکوړه خټک

# ○

# دا قلمي نُسخه

د سوات نامې دا قلمي نُسخه د پېښور پوهنتون د پښتو اکېډمۍ ملکيّت دے، چې د قلمي نسخو په قطار کښې په ق - ن ۵۶۹ نمبر پرته ده. دا خطي نسخه په يوويشتو مخونو مشتمله، چې پخپل نس کښې په مختلفو صفحو د مختلف تعداد شعرُونه لري يعني چرته يووېشت[۱۱] او چرته درويشت[۲۳]، هر کله چه په ورويشتي مخ دولس[۱۲] شعرونه درلي.

دا قلمي نسخه د شمس الدّين د "مناقب فقير" د خطي نسخے سره هم په يو جلد کښے د "مناقب فقير" نه پس خوندي ده، چې خلورسوه يوکم اتيا (۴۷۹) شعرُونه لري.

سوات نامه په دوه مبي ځل "ارمغان خوشحال"[۱] کښے، دويم ځل "تاريخ مرصع"[۲]. او په دريم وار د اوډه ورځنۍ "زيرى" لغوا اکيډمى آف سائنس آف افغانستان د پوهانه عبدالحئ حبيبي د سريزے او

---

[۱] "خوشحال خان په سوات کښے" د سرخط لاندې ما يوه مقاله کښے چې د "خوشحال يو" کال ۱۹۶۳ له مکلانه شروع کيږي د "ارمغان خوشحال" د سوات نامے تعداد ۳۶۱ مبرد لے وو. د دوستو معلومه شوه چه دا ارمغان زما سره چاپي نسخه ناقصه وه. دا کتاب د اشاعت تاريخ نه لري [۲] آگست ۱۹۷۴ء [۳] د مرينے تاريخ نے چاپ تسبه نهم مئى ۱۹۷۴ء دے.

خوګکند دنو سره په کال ۱۳۵۸ شمسي کښې شائع کړه - دغه ذکر شوے چاپي ټولے نسخې په درے سوه یو نوی (۳۹۱) اشعار و مشتملے دی - زمونږ دا موجوده "سوات نامه" د ذکر شوې چاپي نسخې په مقابله کښې اته اتیا (۸۸) شعرونه اضافي لري - چې "نوټونه" کښې یې ځپله موقع ذکر شوے دے -

## مُخَفّفات

ق ن - دَ پښتو اکیډمۍ پېښور قلمي نسخه
ت م - تاریخ مرصع
ا ، م - ارمغان خوشحال
ک چ ن - د کابل چاپ نُسخه
ت ا ک - تاریخ مرصع + ارمغان خوشحال + د کابل چاپ نُسخه

د پښتو اکیډمۍ پېښور د ډائریکټر ښاغلی محمّد نواز خان طائرؔ او لائبریرین ښاغلی سرفراز خان مروت شکرګذار یم - چې د "سوات نامه" د قلمي نسخې او نورو سهولتونو په راکړه کښې ئې د خورا ډېر تندی مظاهره وکړه -

همیش خلیل

مئی ۱۹۸۵ء

○

# سریزه

دَ آریاؤ مقدس کتاب رګ وید چه دَ مذهبي منظوماتو مجموعه ده، د خپل نس په څلورسند رو کښې چرته چه د کوبها (د کابل دریاب)، ګوماتي (دګومل دریاب)، او کرومو یعنې د کرم دریاب ذکر کوي۔ هلته د سندهو (اباسین) د لوئې سیند په ستائینه کښې د یوے سندرے ذکر هم کوي۔ دا ستائینه د سرودونو په پنځم او لسم جز کښې داسے شوېده۔

"........... اے سندهو! ته د هوېمې خپلې چپې او مستې اوبهٔ دَ تریشتاما (TRICHTAMA) راسا (RASA)، سویتی (SUETI) او کوبها (KOUBHA) د سیند ونو سره یو ځائے کوے او بیا هم پخپله هغه اراده "ګوماتی" او "کرومو" را کاږے......"

پوهنه د اباسین او هغهٔ د معاوینونو په ذکر کښې یو سیند د "سویتی" په نامه هم یاد شوے دے چه د سوات له سنده عبارت دے۔ د سوات دا سیند په کال ۳۲۱ قم کښې میګاستیز

د " سواتس " او بطلیموس د " سواستوس " په نامه یاد کړے دے۔ هرکله
چه د رګ وید د سرودونو په شپږم جز او مها بهارت کښې دَ هند
د قطبي لوېدیزو علاقو د نومونو په فهرست کښې هم راغلے دے ۔ د
موسیولسِن په خیال هیون سنګ په خپلو یادداشتونو کښې د
" سو۔ پو۔ فا۔ سو۔ تو " (SOU - PO - FA - SO - TO) په نامه
چرکوم سیند یاد کړیدے۔ هغه هم دغه د سوات سیند[1] دے
او هم په دغه نوم سره قبطي کنډ هارا ته او بۀ ورکوي ۔

د سنسکرت ترپے یوعالم پاننيي چه په کال ۳۵۰ ق م
کښې د صوابۍ تحصیل په تارېخي کلي " لاهور " کښې میشته وۀ۔ د
سوات سیند پخقله خپل کتاب " اشتاهیائی " کښې لیکي ۔

" د سواستو سیند د خپل معاونه " ګوری " (پنجکوړه)
سره د ګندهارا په قطبي خوا اودهي یانه[2] (UDIYANA)
څخه را بهیږي " نباغلے جېتېې ډېبوګوانیکل ډکشنري آف
اینشنټ انډیا " په حواله لیکي ۔

" د سوات دغه بهانډ او نیاض رود په مها بهارته
کښې د بهشیمه (BHISHMA) په نامه یادشوے چه
آریان (ARRIAN) یوناني مؤرخ د ۱۷۵-م په شاوخوا
کښې سواستوس بللے دے ، چه دَ یوداني لیکوالو په
قول دا دَ مملکت یوه سیمه وه او د لرغونے پایه تخت

---

[1] د افغانستان پخوانے تاریخ لومړے جلد ص ۸۹
[2] د سنسکرت لفظ " اوجانه " چه معنیٰ ئې لوسے باغ یا بنه او سرسبزه سیمه ده۔
یعني او سیسنے مردان ۔

لرغونی پایه تخت ئې دَ "ارشته پوره"
(ARISATA - PURA) په نامه د سوات اوسنی
چارباغ وه ـ"

چینی سیلانیانو فاهیان، سونگ ین، ترسون او هیون سنگ د سوات دَ هغه وخت دَ مذهب، تهذیب، تمدّن، ثقافت او معاشرت پهٔ حقله خپلو سفرنامو کښې هُم خپل خپل خیالات دَ قلم لاندې راوستی دي ـ

## (۲)

څهٔ وخت چه سکندر یونانی په کال ۳۳۱ ق م کښې د اخامنش بادشاهت آخری بادشاه "دارا کودومانس (CODOMANAS) ته ماتے ورکولو نه پس هم دَ هغهٔ پسے له ایرانه تر مشهده لاړو بیا د افغانستان د موجوده فراح او قندهار له لارے دکابل په لار له پاخترہ هم تیر شو او سره د خپله فوځه چه له هندوکش واوړیدو نو سکندریه ئې بنهرته ورسید. له دغه ځایهٔ "دَکوفن" (کابل سیند) په خوا روان شو. او څهٔ وخت چه "نکائیا" (NICAEA) ته ورغلو، نو "اتینا" (ATAENA) ته ئې قربانی پیش کړه او بیا هم دلته یونانی لښکر دوه برخے شو چه یوه برخه د جنرل "هیفائسټن او پردیکاس" په مشرئ کښې دخیبر په لار دَ موجوده چارسدے

---

۱ داولف کیدو ئې خیال دا سکندریه د افغانستان موجوده جبل السراج دے
۲ پروفیسر ولسن "او" مکرندان دا دَ پیښور خواؤ شا کوم ځایے یاد کړید ـ هرکله چه یونانی مؤرخ دَ جلال کوټ (جلال آباد) لویدیز اړخ کوم ځائے یادوي ـ

مرکزی ځائے "پیوکلاؤتیس" ته راغله او د دغه ځائے شهزاده "استیس" (ASTES) نے مړکړو.

په قول د "ایریان" د نوځ یله برخه سکندر د ځیل لاس لاندې واخسته او د "اسپاسی"، "کورائي" او "اساکنی" په علاقو ورننوتو. دغه لار ډیره سخته، غرنۍ او لوړه ژوره وه چه د "کوس" (کونړ) نوم یې دریاب سره سره تیلے وه. له دغه دریابه په پورے وتلو یونانی لښکرو ته ډیرے کړانے وړ پیښے شوے. "د کوس" دریابه په پورے وتلو "اسپاسی" قبیلے د سردار سره د مقابلے په وخت په اوږه د زخم خوړلو او قبائیلی لښکر سخت مدافعت په وجه سکندر ډیر وتهریدو. د ځیل تهر په نتیجه کښے په لاس ورغلی ټول جنګی بندیان یې نه صرف قتل کړه بلکه نور ډیر خلق یې هم بے دریغه ووژل. د جنګ په کښه کښے د ځیل قهر او غضب سړولو دپاره یې ښهرهم لوټے لوټے کړو.

دلته نه چه فارغ شو، نو "امندراک" ښهر ته یې مخه کړه. خو دا ښهر هغه یې د څه ورځو دوره ترلاسه کړو. دلته یې ځیل یو جرنیل "کراټیرس" د نوځ د یوے لوئے برخے سره په علاقه د قبیلے د محکمتیا دپاره پرېښو او ځیله د "سواست" د سیند په غاړه غاړه د "اسپاسی" قبیلے مرکزي ښهر ته ورسیده. د "ایریان" لیکی چه څه وخت "اسپاسیان" د سکندر له حملے نه خبر شول، نو د

---

۱ دلغمان او کونړ قبائل - ۲ د کوز دیر قبائل

۳ د تالاش او سوات قبائل -

ښهرخلقو د خپله لاسه دا ښهر وسوځ او په هيڅ غرونو ته وُختل.
خو هرکله چې يونانيانو، قبائيل هلته هم په قرار نهٔ پرېښودل په نيت
د تعقيب په نتيجه کښې دَ قبائيلو او يونانيانو ترمينځه چې کوم لاس په
لاس جنګ وشو۔ هغه هم دَ يونانيانو په ګټه تمام شو او د اسپاسيانو
سردار پکښې ووژل شو۔

د ذکر شوو جنګونو نه پس يونانيان دَ جندول او "ايري ګايون"[1]
ته د اسمار او هند وراج دغرونو له خوا را ښکته شول - دغه
وخت "کرا ټيرس" هم دَ خپل کار د تکميل نه پس "ايري ګايون" کښې
د سکندر سره يو ځائے شو۔

د اسپانيانو سره دَ يو بل جنګ په نتيجه کښې چې په "ښاحات" (جندول
او ناوګئ) شوے وهٔ، هم سکندر ربريالے شو۔ ددې جنګ پحقله يوناني
مؤرخين ليکي۔ چې سکندر ته په دے جنګ کښې خلوېښت زره بنديان
او دوه لکه دېرش زره څاروي په لاس وَرغلل۔ سکندر دغو څارو
کښې دَ ځنو ښهٔ نسل د غوايانو مقد ونيئ ته دَ ليږ لو حکم وکړو۔

يونانيان په ذکر شوو علاقو د جنګونو نه پس په "اساکينې" (بريکوټ
کټ کلے، اوډي ګرام او تالاش) د بلوسے په اراده د "ګورائي" په
خاوره دَ "ګورائيس"[2] له دَريابه پورے وتل۔ او د "اساکيني" په مرکزي
ښهر "مساګا"[3] ئے حمله وکړه۔ دجنګ په ابتدا کښې د يونانيانو پښې
وخوځيدے۔ اساکينيانو د يونانيانو پشا کيدل د خپلے ګټے په غلط فهمي

---

[1] دَ ناوګئ خوا وَ شا ديو ځائے نوم (ګيټس آف انډيا)
[2] مطلب د پنجکوړے درياب دے چې مهابهارت کښے دَ "ګاوُري" په نامه ياد شوے دے۔
[3] دَ پنجکوړه درياب ختيز اړخ ته کوم مقام وهٔ۔ غالباً دَ کټ ګلے دره چې چکدرے نه آټګلے
[illegible]

ډېره خوشحالي وکړه او دَ خپلو منظمو حملو ځائې به غیر منظم ډول ئې خپلو حملو ته دوام ورکړو. سکندر د اساکینیانو له دغه جنګي سهوے به نتیجه کښې په هغوی درونډ یرغل وکړو او اساکینیان ئې ماتې کړل ، او "مساګا" ئې دَ محاصرے لاندې راوسته. خو سره ددے بیا هم اساکینیانو خلورو، څلورو ورځو خپلے حملے جاري وساتلے ولے باوجود د حملو د هغوی ټول کوششونه ناکام شول او سردار ئې چې "اوش" نومیدو ووژلے شو. دا جنګ د سوات په ساهه د سکندر روښ جنګ یادیږي. دغه جنګ کښې د قبائیلي لښکر تعداد دوه زره سواره او دیرش زره پیلي یادیږي.

ددے جنګ کښې سکندر هغه وخت په پښه یو غشے وخوړ کوم وخت چې هغه په یوه غونډئ داو ریدلو د کار نګراني کوله. د "اریان" د بیان مطابق دا غشے د سکندر دَ پښے په ګیټئ (ښنګره) او د "کوټیس" دَ وینا مطابق په پنډئ لګیدلے وو. "کوټیس" لیکي چه دَ غشي څوکه دَ هغه له زخمه وویستلے شوه نو بغیر دخه دارو درملو بے غمه زړه ځغیل کار بیا لګیا شو. ولے دَ زخم په ځغیدلو د درد داحساس له مخه په دے وینا مجبور شو چه :-

" بخښکه زه دَ جوپیټر څوئے ګڼلے شوم
ولے دغه زخم زه دَ انسانانو په قطار
کښے ودرولم."

د "مساګا" خلقو چې نور د جنګ توان راونړلے شو، نو قلابند شول او بادشاه ته ئې د صلح دپاره قاصد ورولیږلو. دَ صلحے دا

درخواست یې چې د مننې شو پسته رانړۍ (ملکه) سره دَ نورو وچتو تېرو دَ اړ تینو د مانړۍ نه وړ وو ته - د غوټولو د سرُ نړ رویه پیالو کښې د نذرانې په توګه شراب اَچوُل - رانړۍ خپل د تِي ماشوُم حوُیُ د سکندر په پښو کښې دَ اچولو. سکندر نۀ صرف دوی معاف کړل بلکه د رانړۍ سابقه اعزاز یُ هُم بحاییُ کړو - دَ خنو خلقو په خیال معافی او اعزاز برقراري د رانړیُ بوبادي او بے وسي نه بلکه د نبایُت د تاثیر نتیجه وه - پسته دَ رانړیُ یو بل حوُیُهم وشو چې سکندر ُونوموُلے شو -

سکندر چې د" اساکنی " له مهمه فارغ شو، نو "کوینس" (*Koinos*) ئےُ بازیره ته په دے اُمید وُلیږلو چې د مساکا د مانے په خبریدلو به دَ هغه ځایُ خلق وسله کیږدی - او "اتالوس" (*ATTALOS*) سےُ "اورا"[۱] (*ORA*) نومے ښهر ته د محاصرے کولو په نیت ولیږلو - د" اورا " قبائل مقابلے دپاره پورته شول - خو د یونانیانو د لویےُ عسکري طاقت دَ وړاندِ هغه بے وسه شول - ځکه ښهر" اتالوس" دخپلے ولقے لاندے کړو -

ولے دَ" بازیره[۲] " ښهر په آسانه قبضه کولو کښے "کوینس" ته ډیرے ګرانے وړ پیښے شوے - بیا هرکله چې سکندر د" بازیره " د خلقو له ارادو نه خبر شو ، نو خپله بازیرے ته روان شو -

---

۱ - ستهین پهخیال دراجه ګیرا ګرهئ او سوات کښے د بیرکوټ (ربیکوټ) نه دخوسلو په فاصله په اوړی ګرام واقع دے -

۲ - "آورل ستهین" "بازیره" د بیرکوټ (ربیکوټ) نه دړنوم آهکلوی اروانی - چې دَ بریکوټ عزمو بهودَ آرین دا ایضاحا توسره مطابق دے (احمد علی کهزار) دَ کنګهم پخیال بازیره د مردان دړ ستم کلی ځایُ آباده وه -

او د یوے مقابلے نه پس یئے دا بنهر هم پخپله د لقه کړو۔ د ت‍شکست باوجود د "بازیره" خلقو اطاعت قبول نکړو او هم د غه وجه وه چه بنهر پریښولو مجبور شول۔ عن جه د "اورنوس" قلا ته ئے ځانونه ورسول۔ دا قلا د یو غر په څوکه آباده وه۔ سکندر د دغو خلقو تعقب وکړو او د قلعه د سرکولو څخه ئے هم وکړه خو بیا ته د خپل استحکامه د قلا لاره د خپلو ستغو پیچومو به وجه ډیره مشکله وه۔

د "اورنوس" د موقیعیت په لړکښے مختلف مؤرخین مختلفے نظرئے لري۔ یک "میجرایبټ" دا د مها بنړ غر بولی۔ ډکورتې خیال دے چه دا امبار (AMBAR) بنهر یا امب (AMB) بنهرکیدے شی۔ هرکله چه هم د دغه مؤرخ د ځنو اطلاعاتو بنیاد د بونیر په علاقه ډ"اورا" په نوم یو بنهر ته هم نمونړ توجه کړځولے ده۔ چه هلته پرته د لوړو لوړو غرونو موجودګی د دغه ځائے محل وقوع د "اورنوس" ډ جغرافیائی حالاتو سره ډیر مشابهت او سمون خوري او د سټیین پخپال د کانا او عوربند ترمینځ د موجوده "اړنا" یا "انړا" زوړ نوم دے۔ بهرحال سکندر ډ "اورا" او "بازیره" د تحفظاتو د استحکام دپاره د "اورنوس" قلا سرکول ضروري ګڼړل۔ ولے سره دکوششه سکندر دا قلا سرنکړے شوه۔ او څه وخت دپاره ئے ډ قلا سرکولو کوشتونه د ځنډ ول۔ او "پیوکلاوټیس" ته چه د سنسکرت "پشکلاوتی" او پراکرت "پسکلاوتی" دے، روان شو۔ "پیوکلاوټیس" د هغه دور د

پېښور یا ګندهارا پایهٔ تخت وه ـ هلته سکندر د خپل جرنيل "هيفانسټن" چه د خيبر په لار له ننګرهاره "پيوکلاوتيس" ته رسيدلے وه، سره يوځايے شو ـ

دلته د اطمينان حاصلولو نه پس سکندر يوځل بيا په "اورنوس" د حملے تابيا وکړه او د خپلو لښکرو د قيام دپاره يے "ايمبوليما" خپل مرکز جوړ کړو ـ د "ايمبوليما" په حقله پروفيسر "ولسن" ليکي :ـ

"وړوستو بيا سکندر "ايمبوليما" نوم يے
ښهر ته چه اورنوس" سره نزدے
دے ورسيدو ـ"

د ډيرے شي چه "اورنوس" ته د واپس تللو په سفر کښے د ګندهارا دوه "شهزادګان" "کوفز" او "اساکيتاس" هم د د سکندر سره وو ـ دغه وار د "اورنوس" په خلاف جنګي تيارو د سکندر د "اورنوس" د فتحے ارمان هم پوره کړو ـ

په "اورنوس" د کاميابئ نه پس د "اساکنئ" ځينو قبائيلو د د بغاوت په وجه يونانيانو يوځل بيا په "اساکينيانو" حمله وکړه ـ دغه وار دوا ړه لښکرے د "دا ئرتا" په مقام يو بل سره مخامخ شوے ـ دوباره سره د ماتے، قبائيلو اطاعت ونه منلو او د خپل هيواده وکوچيده ـ دا ياسيندهٔ پورے وتل او د جهلم او چناب د سيندونو په مينځني ساهه "ابهيسارا" کښے ميشته شول

سکندر له "داړتا" نه چه د مهابنړ قطب خواته پادیږی. د ځنګلو په ګرانو لارو "اوهند"[1] ته ورسید او هم دلته خپلو خدایانو ته د قربانئ پیش کولو نه پس په اباسین پورے وتو. له ګندهارا د سکندر یونانی د تللو نه پس د اباسین په لوید یزه ساهه د یونانیانو د حکومت په خلاف د دغه سیمے قبائیلی سردارانو په ځل یا د خپلے آزادئ دپاره لاس و پښے وهل شروع کړل. خود سکندر یونانی د مرګ نه پس هرکله چه یونانی حکومت ځ په پرېوا نه' او د هغهٔ هر جرنیل د خپلے خپلے بادشاهی خوبونه ولیدل نو سیلوکس

---

[1] یعنی هند چه د صوابی تحصیل یوتار یخی کلے دے. دا کلے د اباسین په ختیزه غاړه آباد دے او پېښور نه د نوښهرے لارے د نیځوسو میلو په مسافت آباد دے. هیون سنګ چینی سیلانی هم په کال ۶۶۴ء کښے د پېښور د دورے په وخت دے کلی لید لوله تللے وهٔ. د رومی عرب سیلانی مقدسی د هند یا غاتو ذکر کړیدے. هرکله چه چنګیزخان د سلطان جلال الدین خوارزم پسے تر دغه ځایه راغلے وهٔ. تیمور او بابر خپلے خپلے هم دلته لکے کړے وے. اکبر یوسفزو د بالا دستئ په غرض دلته قلاجوړه کړے وه. سید احمد د بریلئ د سکهانو خلاف جهاد کولو دپاره هم دلته ډیره وه او هم دغه کلے د کابل د بادشاهانو دارالخلافه وه. فرانسیسی ارکیالوجسټ پروفیسر "فوچر" یئے د باب الهند په نامه یاد دی. پخوا زمانه کښے یئے د (UDABHANDAPUR) په نامه شهرت لرلو. دا د سنسکرت لفظ دے چه معنیٰ یئے د اوبو پورے د تلو ځایئے دے.

چې د سکندر یونانو جرنیل وو، د اباسین په ختیځ ملک چرته
چې د موریا خاندان بادشاه چندرګپت بادشاهي کوله په ۳۰۵ ق م
کښې یې حمله وکړه - ولې خپلو کښې د مفاهمت په وجه دا جنګ
ونشو او دغه شان سیلوکس نه صرف د چندرګپت په ملک ونه
بلوسیدو بلکه کندهارا او د کابل وادي یې هم د هغه په
ولقه کښې ورکړل - چندرګپت اوپسته د هغه ځوئ بندوسرا په
خپل دور کښې د کندهارا په ځاے د هند علاقو کښې د بده مذهب
په تبلیغ زور ورکړو - ولې د بندوسرا د ځوئ چندرګپت په زمانه
کښې څۀ وخت چې بده مذهب کندهارا ته راورسید و، نو په ۲۵۶ ق م
کښې هغۀ خپل یو معروف مبلغ "مادهنتیکا" د تبلیغ په غرض دلته
را ولیږلو - د اشوک د حکومت په دوره کښې بده مذهب تر افغانستانه
خور شو - اشوک چې خپل دور کښې کومے د کانړو تختئ (کتبے) په مختلفو
مقاماتو لګولے وے - هغو کښې یوه شهباز ګړه (مردان) کښې ده.
هم دغه دوران کښې یونانیانو یو ځل بیا د یونانی حکومت
د قیام دپاره کوشش وکړه - ولې د جنګ نه مخکښې د دواړو بادشاهانو
تر مینځه جوړه وشوه.

د اشوک د مرګ نه پس په کال ۱۳۵ ق.م د سیتهین" قوم "ساکا"
قبیلے په کندهارا حمله وکړه - او خپل دغه کوشش کښې
کامیاب شوه. دے وستو بیا هم د دغه قوم "کشن" قبیلے د
"ساکا" قبیلے نه حکومت ترلاسه کړو او کندهارا نه واخله تر
ګنګا وادئ پورے د خپل سلطنت په قیام کښې کامیاب شو که.

دا قبیله تاریخ کښې دکشن خاندان په نام یاده شوه. کنشک د دغه تېر مشهور بادشاه وو. او ددهٔ په دور کښې بُده مذهب ډیره ترقي وکړه.

دکنشک نه پس ډېره موده پل کوم نامتو بادشاه پیدا نهٔ شو. نتیجه یې دا شوه چه ملک په وړو وړو ریاستونو کښې تقسیم شو. بیا هم باوجود ددغو ریاستونو دګپتا خاندان په نوم یو حکومت وه. چه په پنځمه عیسوی صدئ کښې پرے د منځنۍ آسیا "سپین هن" په نامه یو قوم حمله وکړه. دګپتا خاندان حکومت خو ئې ختم کړو. ولے خپله هُم ډیر وخت پاتے نشو.

بده مذهب ئخپل وجذر د مرحلونه تیریدلو په آخری دور د راجه بکرماجیت په اقتدار کښې دهغهٔ د مخالفت مخے ته شو. دبکرماجیت نه پس کشن خاندان یو ځل بیا د بده مت د عروج اواره شوه. خو څهٔ وخت چه هندوانو داووے صدئ په منځ ومیانه کښے د هندو مذهب د تبلیغ ابتداء وکړه، نو بده مذهب په مخالفت او محوکولو ئے د هیڅ قسمه صرفه ونکړه.

وخت په وخت په گندهارا د اقتدار د بدلیدلو را بدلیدلو دا خرخ په کله ورو او کله گړندے شو. کله به گندهارا د خرخ له حیکره آزاده هم شوه. خو هر کله په لسمه صدئ عیسوي کښې چه "هندوشاهیه" راجه جے پال دلته خپل حکومت قایم کړو، نو درو دروځ ترسواته یې پښے وغزولے. په سوات کښې دبری کوټ په مقام چه کومه کتبه برآمد شویده. په سنسکرت ژبه پرے دا الفاظ درج دي.

"د داعلیٰ بادشاه دور د شاهان عظمیٰ
د بلند مرتبه شاه او مختار اعلیٰ
سری جیپاله[1] د وا۔"

# (۳)

د یوسفزو د اصل نسل په حقله تاریخ مختلفې نظرئې بیانوي د ځینو مؤرخینو په خیال یوسفزي هغه قبیله ده، چې تاریخ کښې د "پکهتیان" په نامه یاده شوېده او یو وخت د هندوکش په غرونو کښې میشته وه - دې وسنو به له دغه ځایه وکوچیده او هغو پښتنو سره یو ځای شوه، چه د فلسطین له خوا د هجرت کولو نه پس د غور په غرونو کښې آباده شوې ده - د دغو مؤرخینو په خیال یوسفزي هم هغه خلق دي، چې یوه زمانه کښې د "اسپاسی" په نامه د کونړ او باجوړ په ماهو آباد وو - او د وخت تیریدلو سره سره د "اسپاسی" نه "ایسپ" او "ایسپ زی" شول -

ولې د ځینو پښتنو او ځینو غیرو پښتنو هغو مؤرخینو چه پښتانه بنی اسرائیل ګڼړي د نظریو، ځینو روایاتو او انساب د بیان له مخه د یوسفزو مورث "یوسف" او مندړو مورث "مندړ" پلار، عمر پچیلو کښې سره ورونړه وو او دا دواړه د مندي ځامن وو - مندي د خابني، خابني د کند، کند د خرښبون، خرښبون د

---

[1] یعنې راجه جې پال، چې ورستوئې بیا د محمود غزنوي له لاسه ماتې وکړه -

سړه بن او سړه بن دَ قیس ځوئے وو۔

د سپلے شي، چه خاپتے لا یه افغانستان کښے وو۔ چه دغه یوسفي عمر هندوستان ته هجرت وکړو او دَ اباسین نه پورے غاړه په حسن ابدال کښے میشته شو۔ دلته دَ عمر یو ځوئے وزیګید و۔ او دَ ستو بیا عمر هم په دغه ځایئے وفات شو۔ هرکله چه یوسف دخپل ورور له مرګه خبر شو نو دَ خپل وراره مندړ او درمندارے سره حسن ابدال ته لاړ۔ چه ورو دستو یئے بیا دَ خپله ځانه ځخه افغانستان ته واپس بوتلل۔ څه وخت چه بیا دَ عمر ځوئے زلمے شو۔ نو یوسف خپله لور ورکړه ۔ د مندړ په وجه دَ یوسف اولاد په یوسفزو مشهور شو۔ بیا د افغانستان په پرینیدلو څه وخت چه د ملک احمد په مشري کښے دَ مردان او سوات په علاقو آباد شول نو مندړ هم په حیث دیوے قبیلے یاد شول ۔

## (۴)

دَ خپل قبیلوي ژوند په دوران کښے پښتانه اکثر د زرخیزو او آبادو مزکو دپاره دَ یوبل سره مشت وګریوان وو۔ هم دغه وجه ده چه څه وخت "خشي" قبیلے دَ غوریا خیلو دلاسه ماتے وکړه۔ نو دخپلو ساهو" ګاړه " او " نشکی" نه کابل ته وکوچیدل او مستقل طور یې هلته استوګنه اختیار کړه۔ دغه اوان کښے دَ ابوسعید بهادر تیموري ځوئے شهزاده مرزا الغ بیګ هم کابل ته رسید لے وو۔ شهزاده چه دغه وخت یو کم عمر هلک وو۔ ډیر په بدحال وو ۔

ملک سلیمان شاه چه دَ خشی قبیلے سردار وو۔ او دَ کابل خواؤشا په علاقو قابض وو۔ د شهزاده مرزا الغ بیگ سره ئے پیژند گلی وه۔ دغه پیژندگلئ د دوارو ترمینځه یو تعلق پیدا کړو۔ دا وو وو دا تعلق دومره زیات شو چه ملک سلیمان شاه خپله لور شهزاده ته ورکړه۔ لکه د خپل اولاد ئے دَ شهزاده تربیت او پرورش په دے خیال کولو چه که سبا هغه بادشاه شی۔ نو دَ قوم به ئے بکار شی۔ اتفاقاً یوه ورځ چه حضرت زبدة المکاشفین عمدة الاولیاء شهزاده د ملک سلیمان شاه په غیږ کښے ولیدو، نو دَ هغه مجلس ئے ورته دا پیشن گوئی وکړه۔ چه هم دا شهزاده به یو ورځ دَ هغه د قوم قاتل شی۔ ولے ملک سلیمان شاه دا خبره ونه منله او نه ئے څه اهمیّت ورکړو۔

څه وخت چه مرزا الغ بیگ بادشاه شو۔ نو د حکومت ټول کاروبار ئے د ملک سلیمان شاه په لاس شو۔ هم دغه وجه ده چه یوسفزی په حکومت کښے په هر حیثیت غالب شول۔ نتیجه ئے دا شوه چه بیا به ئے دَ بادشاه هم څه پروا نه وه۔ او څه زیاتی ئے هم شروع کړے ۔

ګګیانړی چه د وړو میے نه دَ یوسفزو خلاف وو۔ او اکثر به سره لاس وګریوان وو۔ دغه مخالفت نه د سیاسی فایدے اخستلو په غرض بادشاه دَ وړو میے نه دَ یوسفزو دَ قوّت کمولو په فکر وو۔ خو دوخت او موقعے منتظر وو۔ د دوارو قبیلو خپلو کښے دَ مخالفت په وجه وړو میے بادشاه په ګګیانړو حمله وکړه۔ خو د حملے نه ئے وړاندے د ملک سلیمان شاه سره هم په دغه ضمن کښے یوه جرګه کړے وه۔ د حالاتو له مخه ملک سلیمان شاه په نه زړه دَ بادشاه د رائے سره

د خپلې رایې ډېر والی اظهار نه وکړو- ولې څه وخت چې بادشاه په ګګیانړو حمله کوله- نو د حملې نه وړاندې ملک سلیمان شاه هغه ډ صورت حال نه خبر کړل - هم دغه وجه وه چې د حملې نه وړاندې ګګیانړو محفوظ مقام ته پناه وړې وه - چې نتیجه یې د بادشاه ناکامی شوه -

خو هر کله چې دوستو بیا بادشاه په ګګیانړو د مهم د ناکامۍ له رازه خبر شو- نو د بادشاه د تولو یوسفزو او خصوصاً د ملک سلیمان نه اعتبار پورته شو او بیا یې د سپینو پر ګلو په لښکر شو- او دغه وار هغه د یوسفزو د وهلو د پاره ګګیانړو ته لاس ورکړو او هغه یې د یوسفزو خلاف راوپارول - بیا یوه ورځ د بادشاهي فوځ په مرسته ګګیانړو غوړه مرغۍ کېږې یوسفزو حمله وکړه - یوسفزو یې په نه مقابله وکړه- ګګیانړي او بادشاهي لښکر یې مات کړو - د یوسفزو په دغه بری بادشاه د هغو له طاقته نو ره هم خائف شو- ګګیانړو سره د دوباره جنګ او مصلحت نه پس بادشاه د یوسفزو سردارانو او ملکانو د تللو د پاره د یوې بلې حکمت عملۍ او فریب له سیاسته کار واخست - بادشاه یوه جرګه سره د ډېر انعام او اکرامه یوسفزو ملکانو ته په دې غرض ولیږله - چې جرګه یوسفزو ته د حکومت له خوا د معافۍ زېرے ورکړي - یوسفزي د غلط فهمو په وجه د انعام اکرام د دغه شوو تا ړ نو په دام کښې ونښتل - او د ګلونو د ډالۍ لاندې هغه تورې یې ونه لیده چې هم د دوی د سرونو د پرېکړے د پاره جوړه شوې وه - بیا څه ورځې پس چې د یوسفزو د سردارانو یوه ډله

دبادشاه په خدمت کښې د حاضرېدو په نیت کابل ته رسیده - نو بادشاه خپله هم دَ خپلو امیرانو سره دَ هغو استقبال ته ولاړ وو- چې ورسېدلو سره یې په ډېر عزت او درناوي محل ته ورسول، او هلته یې په قیمتي خلعتونو او کافي ورقمونو ونمانځل- او چې ترکومه بادشاهي میلمانه وو - بې خوشحالولو یې دَ هیڅ کمې نه وو-

هم ددغه میلمستیا په شپوورځو کښې دَ شرابو بدمستۍ په وخت به دے خیال چې کلې بادشاه نشته ، ځنو یوسفزو زلمو د خپل ګډو ودو مظاهره وکړه - نورے یې له تیکو زاوُ لیسے چې په دیوالونو او ستنو یې آزمائیلے - دا بدمستي په بادشاه منبځ ونه لګیده - ولے مصلحتاً خاموش وو - دغه حرکت د یوسفزو خلاف دَ بادشاه د قهر وغضب جذبه نوره هم را دلږزوله - خوهر کله چې دغه وخت یوسفزي په وسله پوره وو- ځکه بادشاه داهرڅه بادلِ ناخواسته وَزغمل - بیله ورځ یې بیا هغه نول دَ انعام او اکرام سره په ډېر عزت رخصت کړل - او دغه شان دَ سازش د منزل ډېر ومبے پړاو په خیر خیریت سره تېر سره شو-

څه وخت پس دویم او آخري پړاو ته دَ را رسولو دپاره مرزا الغ بیګ د یوسفزو ملکانو او سردارانو ته بیخپل دویم پیغام کښې په بوشاهي ضیافت کښې د شمولیت او اعلیٰ خلعتونو او لویو لویو انعامونو د ترلاسه کولو ترپرے ورکړو - چونکه دَ بادشاه له خوا په وړومبۍ مرحله کښې دهغه په ظاهره دَ مهربانۍ سلوک او وضع د بادشاه له خوا دَ هر قسمه نقصان خوف دهغوله زړونو ویستے وو - نو ځکه په دغه دویم ځل او دغه سوره په مرغه نامتو او غښتلي یوسفزي ملکان او سرداران دَ بادشاه په خوږو کښې د زهرو

په حقیقت ګڼه رسیدل. ځکه چې دغه دارېږي خپلې وسلې هم د بادشاهۍ
حکم په مطابقت کښې د کابل په حدودو کښې د داخلیدلو نه وړاندې
د نبهوه بهر پرېښوې. د یوسفزو دا عمل د ړوند په تجربو کښې د غفلت،
سیاسي تاریخ نه د بې خبرۍ او سیاسي شعور د فقدان هغه المیه ده.
چې آخر یې دغه اووه سوه د سر یوسفزي هغه ځای ته ورسول چېرته چې
مرزا الغ بیګ بوتللو غوښتل.

د یوسفزو ملکانو دربار ته په رسیدلو د دوی د قتل د ډرامې
مرکزي کردار یو ځل بیا چې د شفقت، محبت او مهربانۍ کومه مظاهره
وکړه. هغه ددغې ډرامې د دوهمې مرحلې نه زیاته حسینه او دلفریبه
وه. ځکه خو د وخت د ناوخته کېدلو په بهانه دغه مرکزي کردار د
قربانۍ دغه پسونه چې اوس د قصاب په موږي ولاړ وو. مختلفو میرانو
او خانانو پورې غرض کړیشل. چې دوی بیل بیل په د هغوځان ځانله
ضیافت کوي. دغه شان اووه سوه میلمانه د یو فیصله شوې مصلحت
له مخه په مختلفو امیرانو او خانانو ووېشلې شول او دغه د انجام نه
بې خبره د ضیافت په خوشحالۍ کښې د خپل خپل کوربه سره شو چې ضیافت
خو ورته کړې شو. البته د حکومتي استحکام د پاره خپله ضیافت
شول. کوربنو سیوا د ملک سلیمان شاه نه چې په بادشاه یې احسان وو د
ټولو میلمنو ته وُترلې او بیا دا ترلي یوسفزي د بادشاه په خدمت کښې پېش
کړې شول. دغه زمان د ملک سلیمان شاه د کوششونو باوجود چې هیڅ نتیجه
ونه وته. نو په مرزا الغ بیګ یې خپل درې مرضونه ومنل. یو دا چې د هغه
(ملک سلیمان شاه) په ځای یې د د هغه ورور ملک احمد خوئې د سلطان شاه
چې هغه وخت مجلس کښې وو، د مجلس شي. دویم دا چې د ټولو نه اول د هم هغه

(ملک سلیمان شاه) قتل کړېشي چې نور په قتلېدلو ونه وېني - او دریمه دا چې د ملک احمد سره ددے اوۀ سوؤ لاس ترلو دَ قتلولو نه پس په یوسفزي قوم هېڅ غرض ونهٔ لري - قتلول، تاراجول او بندول دِ ېئ نکړي - او چرته چې ئې خوښه وي - تعرض دِ پرے نهٔ کوي مرزا الغ بیګ د سلیمان شاه دا درے واړه خبرے ومنلے -

لنډا دا چې اوۀ سوه یوسفزي سرداران او ملکان قتل کړے شول - د دې وروستو ئې بیا د یوسفزو علاقه هم تاخت و تاراج کړه - د دغه نه پس یوسفزو د ملک سلیمان شاه د نصیحت مطابق دَ احمد په مشرۍ ډیره بد حال د خیبر په لار پېښور ته وُکوچیدل - هغه وخت په پېښور، دوابه، باجوړ، ننګرهار، کلپا نړئ، بلکه عن ترهزاره او سینده د دلهٔ زاکو قبضه وه - دلهٔ زاکو یوسفزو ته د دوآبے سره د دانش کول، عنبر او باجوړ علاقے د دې د بخښلے - هغه زمانه کښې د سوات بادشاه "پکهل" نومیده - چې په منګلور کښې وسیده - او ډیر و پښتنو یو رے ئې په سوات بادشاهي کوله - د دغه خاندان آخری بادشاه د سلطان پکهل ځوئے سلطان اولیس وو - چې د دې وروستو بیا یوسفزو د ځو جنګونو نه پس مات کړو - او یوسفزی د یو فاتح قوم په حیث په سوات قابض شول -

په کال ۱۵۱۹ء کښې بابر دَ یوسفزو دَ تباهۍ په خیال دَ باجوړ په لار سوات ته را ننګته شو - د دے نه مخکښې ئے باجوړ کښې ګبریان مغلوب کړل - بیا دَ پنجکوړه دریاب په غاړه دَ دریا رون په نوم یوه آبادۍ کښے په سوات دَ حملے په غرض ئے د خپو د ځو دَ قیام نه پس په منګلور حمله وکړه

دشکلوره واپس دیاروند ته ستون شو او د یوسفزو په تعاقب کښې د مورې د غرهٔ دلاسې په فکر شو. خو یوسفزو چه د مورې په غرهٔ کښې پناه اخستې وه. زیږ نکړی شول. آخر چې یوسفزو محمد خیښې کولو نه پس بابر هم د باجوړ په لار کابل ته بیرته لاړ.

هم د کال ۱۵۱۹ء د منی په موسم بابر د خیبر په لار یو وار بیا په کوزه پښتونخوا حمله وکړه. د یوسفزو سره د خیښې باوجود یوسفزي د بابر اقتدار ته نهاد نه وو او د دغه مهم لوئې مقصد کلی طور د دغو تیاشیلو خیل اقتدار لاندې راوستل وو. وَلے بابر تر آخره پخپل دغه مقصد کښې کامیاب نشو. نه صرف بابر بلکه د هغهٔ د پس د هغې جانشینو هم دغه ارمان په زړهٔ یوړو. عمر چې ورستو بیا جلال الدین اکبر د یوسفزو د محکومولو د پاره پخپل آخری کوشش کښې د زین خان د راهلینو او بیسته د هغهٔ د دې تجویز سره متفق شو چې د سمه منډتړ په یو حمله داسې تباه شي، چې دغه زونو د تیاشیلو سره د مرستې کولو څوک پاتې نه شي. ځکه نو اکبر دوه عسکري دستې د ذکر شوي مقصد د پاره، چې یوه دسته د مهیش داس (بیربل) او بله د حکیم ابوالفتح په قیادت کښې وروليږله. دغه دواړه جرنیلان چې په میدانی جنګونو کښې د جنګ اهل نهٔ وو، ځکه اکبر بیربل ته د حکیم ابوالفتح سره په ګډه د پیش قدمۍ حکم وکړو. زین خان خود "تالاش" په لار سوات ته د رسیدلو د پاره په چکدره مورچه جوړولو کښې کامیاب شو. او له دغه ځایه یې د ملاکنډ په دره قبضه وکړه. دغو حالاتو د بیربل او حکیم ابوالفتح د پاره په سوات کې د وړ تنګ لاره جوړه کړه. او د وړاندې اقدام د پاره د دریابوو جرنیلانو او فوځ ترمینځ یوه غونډه وشوه. وَلے د زین خا

خیمې ته ورتلۀ بیربل خپل هتک گڼړلو. د بیربل مطالبه وه.
چې دا غونډه دِ د شاهي بیرغ لاندې هم د هغۀ په خیمه کښې وشي.
مجبوراً زین خان د مصلحت له مخې په نۀ زړۀ دا مطالبه ومنله
غونډه کښې زین خان دا تجویز پیش کړو چې د فوځ یوه برخه دِ هم
په چکدره کښې د مرکزي مورچې د حفاظت دپاره ماتله شي او دویمه
برخه دِ په بونیر کښې په باغي قبائیلو د حملې دپاره ولیږلې شي. ولې د زین خان
د دغه تجویز سره نۀ خو بیربل متفق شو او نۀ حکیم ابوالفتح. د دې دواړو
خیال دا وو. چې د بادشاهي حکم مطابق دِ په قبائیلي علاقو د لوټ
مار په ذریعه خوف او هراس خور کړې شي. نۀ چې دا علاقې دِ قبضه
کړې شي. ځکه نو ضروري ده. چې د دریواړو سرلښکرو لښکې دِ په
یو ځای د باغي قبائیلو علاج دپاره د کړاکړ په لور روانې شي او بیا
دِ د هم دوستو په اټک کښې شاهي کیمپ ته ځان ورسوي.

ولې د زین خان خیال وو. چې کومه علاقه هغۀ په ډېر مصیبت
ترلاسه کړې وه - هغه دِ د لاسه و نۀ وځي. بیا هم کۀ چرې هغه
د خپلې خبرې نه چا ر وزي، نو د سلاکنډ په لار دِ واپس شي چې نسبتاً
آسانه او هغه ترې واقف دي. او په کومه علاقه د مرکز ځوړولو نه
بغیر تول فوځ د بونیر په سخته او مشکله لار اچول مصلحت نۀ
دے. ولې د زین خان د دغو خبرو په بیربل او حکیم الفتح هیڅ هم
اثر و نشو. سره د دې چې بیا هم زین خان مجبوراً د هغو تجویز ته په
نۀ زړۀ غاړه کیښوه.

چکدرې ته د رواښېدو د دوه ورځې پس څۀ وخت چې فوځ د

بېرګټ نه واوړېدو او کړاکړ درې قطبي ارخ ته ورسېدو، نو قبائيلو دَ خپل يلغار په وجه مغلي فوځ په لاره کښې ايسار کړو. نتيجه دا شوه چه فوځ ټوله ورځ بڅېل بند ماتولو تېره کړه. آخر چه فوځ بڅېل مقصد کښې کامياب شو او دَ فوځ هراول دسته چه څه وخت دَ کړاکړ خوکې ته ورخته. نو دباقي پاتې فوځ دَ دې سيدلو نه وړاندې هراول دسته بونير ته وکوچېده. زين خان نه صرف ډېرې قبائيلي حملې وَ زغمولې. بلکه څلور قبائيلي سرداران ئې هم په ګولۍ کړل. په ډېر مصيبت بادشاهي فوځونه دَ بونير ميداني ساحو ته دَ دې سيدلو نه پس حمله آور او بوځل بيا په تورسک سره جرګه شول. دلته زين خان يو ځلې بيا خپل ملګري دکړې او ملندري دېپچومو او ګرنګونو دسخت ولاړ. وله حقيقته په عوږ وو هل. څو دغه ځل هم دَ زين خان خبره چا په غوږ وا نه چوله. هم دغه الا تو کښې يوسفزو په بادشاهي فوځ يوه سخته حمله وکړه. کوم چه په دې سيدلو بادشاهي فوځ سمې ته د رسيدلو په ګمان هغه وخت ډېر مايوس شو. کوم وخت چه هغوی د ملندري په شکلونو دتېرېدلو په حقيقت پوه شول. دغه وخت فوځ دا ړي ګوړي ښکار شو. دَ فوځ درومبئ اولويه برخه دَ څه ترتيب او تنظيم نه بغير په مخه لاړه. صرف دَ زين خان د قيادت لاندې دَ فوځ برخه منظمه وه. بيا هم قبائيل چه دَ دره ځې نه دَ ښکار په څوَ ناست وو. په بادشاهي لښکر غښتلي ووَرَوُل. دَ قبائيلو په دغه ناساني حمله دَ هلې ګلې په وخت دَ لښکر ډېر سپايان د تېښتې په حال کښې د غره نه سَرد لاندې ګذار شول. او دَ مخکښې لا دې دَ

بندیر په وجه هاتیان، اُسونه او سپایان سره دا سې کړه وړ شول۔ چه لاره او کوډر تورې خطا شوه۔ قبائیلو په بادشاهي لښکر په خلاص زړهٔ خپلې مېټې وُ آن ماتې کړې۔ نتیجه یې دا شوه۔ چه دَ قبائیلو سره په دغه جنګ کښې بیربل سره دا توره زره سپایانو هلاک شو۔ ابوالفتح او زین خان چه د ملندرۍ په خوکه یې پناه اخستې وه۔ د شپې روانې شولو نو بیا په دریمه ورځ دَ بابې پاتو لښکرو سره د اټک کیمپ ته په ډېر بد حال رسیدل اګرکه شهنشاه اکبر دَ خفګان په وجه چه دوی د بیربل لاش ورسره نه د ځان سره یو نهٔ راوړ۔ زین خان او ابوالفتح ته یې دوه ورځې دربار کښې د حاضرېدو اجازت هم ور نکړو۔ خو په دریمه ورځ څه وخت چه اکبر بادشاه په اټک د یوسفزو دَ حملې نه خبر شو، نو مجبوراً یې د صلاح مشورې دپاره دربار ته وغوښتل۔ د یوسفزو په اټک د حملې په شاکولو دپاره اکبر یو ځل بیا زین خان سره دَ خپله ځویه مراد د یوسفزو دَ مقابلې دپاره ولیږلو۔ د دغه دار مغل دپښتو دَ حملې په ناکامه کولو کښې کامیاب شول۔ البته دَ یوسفزو دَ پرېشانه کولو دپاره یې خپلو حملو ته دوام ورکړو۔ او یوسفزو په خوا یې په "ګړی کپوره"، "سنګر کوټ" او "هنډ" فوځي خوکۍ وُدرولې۔

په ملندرۍ د شکست نه پس دَ زین خان په قیادت کښې د کال ۱۵۸۷ء نه تر کال ۱۵۹۲ء پورې زین خان دَ یوسفزو په خلاف ډېر جنګونه وکړل۔ ولې څهٔ کامیابي یې بیا نهٔ موندله۔ اګرکه د دغو جنګونو په حقله د مغلي فوځ دَ کامیابۍ په ذکر کښې د بادشاهي او درباري مؤرخانو سره اخون درویزه بابا هم همنوا دے۔ چه دَ مغلو د طرفدارۍ دَ ثبوت یو اهم ځ یې واضح کوي۔ په ذکر شوُ جنګونو کښې د یوسفزو د کامیابۍ

دتولو نه لوئے ثبوت دا دے ۔ چه د یوسفزو علاقه خصوصًا سوات او باجوړ چرے هم دَ مغلو په قبضه کښے نۀ دی راغلي۔

بیا دهمایون او شاهجهان په وخت به نږ یجت ساهه کومه داسے واقع نۀ ده پیښه شوے چه دلته یئے ذکروشي۔ البته د شاهجهان په وخت د یوسفزو سره د مغو تعلقاتو پیدا کولو کوشش شوے وو۔ او یوسفزو ملی قائد بهاکو خان ته یئے دَ یوسفزو په علاقه د محصول دَ حصول اختیار ورکړے وو۔ بهاکو خان دَ حکومت له خوا ددغه اعزاز په قبلولو شاهجهان هغۀ ته دَ نیمۀ نسل یواَس سرۀ په سرۀ نږ ورو دَ یو انځور شوي زین دَ تحفے په طور ورولیږلو۔

د بهاکو خان په دور یوسفزو کښے دَ اخون چالاک په نوم یو بزرګ پیدا شو۔ اخون چالاک د مذهب په نوم یوه دله جوړه کړه۔ بهاکو خان دَ مُلا چالاک په مرسته دَ چغرزو په غرنیزه علاقه دیوے نا مُسلمے دوما نوم یئے قبیلے په خلاف جهاد وکړو۔ او دوما یئے له هغه ځایه وویستل۔ په دغه کامیابۍ د بهاکو خان حوصله زیاته شوه۔ بچنیل سیاسي قوّت کښے دَ اضافے دپاره هغۀ د یوسفزو په منظم کولو کښے تر ډیره حده کامیاب شو۔ د سیاسي قوّت د استحکام سره یئے داباسین نه پورے غاړه تربیلۍ پورے په علاقه خپل اقتدار کښے د اضافے په غرض ویلوسید و۔

دَ شاهجهان نه پس د اورنګ زیب په زمانه کښ هغۀ په دے وجه په بهاکو خان لښکرکشي وکړه چه هزاره کښے دَ مغلو سرکاري افسرانو جائیدادونه وو، کوم چه دَ اټک قلا په حفاظت مامور وو۔ څکه نو

یوخوا د اټک کمانډر توحید ارخان، پېښور له ورپسې راجه مان سنګه او کابل له خوا شمشیرخان په دار رسیدلو دَ "هنډ" په مقام دَ یوسفزو سره جنګ وشو۔ ولې هیڅ نتیجه یې راونه وَته۔

شمشیرخان یوځل بیا په یوسفزو دَ فتح حاصلولو په نیت په پنجپیر، شاه منصور او مرغز نه په چاپېره علاقو قبضه وکړه۔ او دا جنګ تر یوې دوام ورکړو۔ جنګ وېی د شو۔ د سوات او تیراه قبائل هم په جنګ کښې د مغلو خلاف ورګډ شول۔ دَ "هنډ" په دغه جنګ کښې یوسفزو مصلحتاً شاه منصور کښې خپلې مورچې پرېښوې۔ دا واقعه دَ کال ۱۶۶۷ء دَ جون دَ اتهٔ ویشتې ورځ ده۔

د دواړو طاقتونو ترمینځه جنګ جاری وو۔ دواړو ډلو کښې یو هم ماتې منلو ته تیارنهٔ وو۔ تقریباً دوه میاشتې پس دَ کابل ګورنر محمد آمین خان دخپل لښکر سره د یوسفزو خلاف په جنګ کښې شامل شو۔ محمّد آمین خان په ډېره چالاکۍ په انعام و اکرام او لالچ یوسفزي دوه تقسیم کړهٔ۔ او یوه قبیله اتمانزی یې د حریت پسند ورنه بیله کړه۔ محمّدآمین په دریمه ورځ دَ خپل لښکر یوه برخه شهباز ګړې ته او بله باجوړ ته دَ خپل تصرف لاندې راوستلو په نیت ولیږله۔

د لښکر دَ هغه برخې کان محمّد آمین خان پخپله کولو۔ کومه چې باجوړ ته تله۔ په سوات دَ ورګډیدلو سره دَ کابل ګورنر ډېر خایونه وران ویجاړ کړل۔ ولې د بیربل دَ انجام خوف هغه ئې د "هنډ" کېمپ ته په واپس کېدلو مجبور کړو۔ دلته هغه یوځل بیا کمان د شمشیرخان حواله کړو۔ او دغه شان مغلو

په یوسفزو خپلې نګرانۍ ته دوام ورکړو۔

## د خټکو او یوسفزیو اختلاف :۔

د دغه اختلاف وجه د تاریخ مرصع مؤلف افضل خان خټک دا بیانوي۔ چې یو وخت خټکو یوسفزي د مصري کوټ (مصوي باغنړ) نه جلاوطنه کړي وو۔ خو نبا غلی او لف کیرو وائي چې د بیربل د هلاکت نه پس اکبر د یوسفزو د لاندې کولو له څخه خټکو ته فائده تر لاسه کړه۔ چې هغوی د لنډي سین څخه په قطب ځ سمه په ځ علاقو قبضه وکړه۔ نتیجه یې د دواړو قبیلو ترمینځه دښمني شوه۔ چه تر یوې صدۍ جاري ده وه۔

ولې د دغو وجوهاتو علاوه د دغه ترینګلتیا یوه وجه دا هم کیدلې شي۔ چې څه وخت ملک اکوړے سره د خپل خوئې یوسف خان، دنانو خان بولاق خټک دلاسه قتل شو۔ او وروستو چې د ملک اکوړي مشر خوئې یحیٰ خان سردار شو، نو د انوخیلو، تری

---

ع ا دنبا غلی کیرو دا خیال دیخو راورتي به خیال ادانړه دے۔ دراورتي بیان دے چې داکبر په زمانه کښې د مغلو او یوسفزو ترمینځه عداوت او خټکو دخټکو دپاره د یوسف زو او مندنړو په علاقو د پیش قدمۍ دپاره لاره جوړه کړے وه او خټکو نه وختے وخته د مندنړو علاقے وړه وړه د خپل تصرّف لاندې راوستے۔

او نورمان خټک قبیلو په مرسته یې په بولاق خټکو حمله وکړه د خیل پلار او ورور بدل یې واخست - دې بولاق یې قتل او بندیان کړل - څه بولاق یوسفزوته لاړل او هلته یې پناه واخسته - څه د منډ نرو په علاقه چې اوس هم د "بلاق" په نوم یوه تپه کښې آباد دي، میشته کړے شول. بیا وخت بیوخته به تری خټکو په بلاق خټکو هلته هم حملے کوُلے - یوسفزو به د بلاقو اعانت کولو، چې نتیجه یې د دوارو قبیلو تر مینځه د یو بے د دشمنۍ شکل واخستو -

بلہ وجہ دا هم کیدے شي - چې خټکو هر کله مغل تبه کلک مسلمانان گڼرل - تر هغه وخته دا اسلامي تعلیماتو له مخه په حیث د راسخ العقیده مُسلمانانو د اولو الامر اطاعت یې هُم بخپل ځان یو مذهبي فرض گڼرلے وي - او د اسلام د بادشاه د پاره یې د هر باغي خلاف توره وهل خپله مذهبي فریضه گڼرلي وي -

(۵)

د خوشحال خان خټک "سوات نامه" چې د خپل اهمیت او انفرادیت له مخه پښتو ادب کښې یو اهم اثر دے - په دریو حصو "ارمغان خوشحال" کښې - بیا "تاریخ مرصع" او په آخره د اووه ورځتي "زیری" له خوا اکیډمي آف سائینس آف افغانستان د پوهاند عبدالحی حبیبي د سریزے او څرگند ونو سره په کال ۱۳۵۸ ش کښې شائع کړه[۱] -

---

[۱] دا کتاب سره د مقدمے د ښاغلي میاں سید رسول رسا د یونیورسټی بک ایجنسی پېښور له خوا شائع شویږے - دغه کتاب کښې چې کومه "سوات نامه" شائع ږے شوے ده د څه د چاپي نسخے مطابق دے سوه یو شپیته (۱۶۳) شعرونه لري - دا کتاب اشاعت تاریخ نه لري[۲] دا افضل خان خټک تالیف دے - مقدمه تصحیح او نوټونه پرے د خدای بخښلي دوست محمد خان کامل مومند دي دغه تاریخ کښې چې کومه سوات نامه شائع کړے شوے ده[۳] سوه یونوي شعرونه لري[۳] دا هم ۱۹۱ شعرونه لري

دبیانولوسره سره دسوات په جغرافیائی حالاتوهم بنهٔ رنړاغوزګلےده. علاوه له دےنه
ددغه مثنوئ یوه قلمی نُسخه پښتو اکیډمیٔ اودبله راقم الحروف هم لري
او ددغه دوارو خطی نسخو دتقابلی نتیجے په ترکښے چه راقم الحروف اوس ذاکوم نسخه
مرتب کړیده - هغه په څلورو سوو نوکم اتیا (۴۷۹) شعرونو مشتمله ده۔
مثنوی سوات نامه متوسط بحرونے ساده او چست شعرونه لري
خو د مشکل الفاظو د استعمال په وجه د عامو خلقو له پوهے نه دا شعرونه ګرځ
دي - دغه مثنوي کښے خوشحال خان دسوات د سفر او دورے د حالاتو
د یوسفزو د تمدن او معاشرت بحمله هم ډیر څه وئیلي دي، د تاریخی
او قومی کشمکش د واقعاتو سره دعقائدو بحث یکښے هم شوے دے. خو د
علمی او ادبی انتقاد هم لري - د اعتقادي نظریے نه علاوه د اخون
درویزه بابا په مخزن الاسلام یکښے نکته چینی شویده -
د دغه مثنوی محرکات او پس منظر د خوشحال خان د ژوند له هغه برخے
شروع کیږي چرته چه دخپل چاپیرچل حالات هغه په یو دا سے قدم
پورته کولو مجبور کړے وو - چه د موصوف په خیال او خواب کښے هم نه
وو - دکال ۱۰۷۴ھ د جمادی الثانی د دربارې سازش د الیمے نه پس
یو درځ خوشحال خان په دے دینا مجبور شو - چه :- ؎

دَمغل ونه خبرے په وربوز کړم | سرے پریوزه که به سرو ژنه بیا کوز کړم
نه به خپل نه په پردي هم خوپه تنګیم | دا په ننګ کښے ناوره درسره په جنګ یم
مرګله هومره فرصت راکوه په جهان کښے | چه جمد رد مدعی په وینو سور کړم
خو دا څخلی له ظلمه انتقام | مردنه خوب کا نه خوراک کا نه آرام

او بیا هم هغه خوشحال وو - چه د مغلو دپاره یئے د کومو پښتنو په وینو
لاس سره وو - دوئیل ؎

کړه د سمے کړه د غره دي یوسفزي
همګي زمري دي مړه یې وَه زوال

یوسف زي دي چې په ما یې منت بار کړ
لا به اکوز یو د ننګ چار ده مُسلمه

نن د دا ړو پښتنو په ننګ ولاړ یم
دا چې هسے په هر در هر د ننګ ولاړ یم

چې پښتون شوم په دا هسے سینه زړوه
نورے خدایې مکړه مغل وا یم په خیره

په نوښهره خوشحال خان ارکړ په اېمل خان له لا سه د بادشاهي فوځونو شکست د دریاخان په زړه کښے هم د کوهاټ د قلا د سرکوزے خواهش او جذبه راولاړه وله ـ آخر که د خوشحال خان او دریاخان ترمینځ په کوهاټ د یو شریکے حملے بحقله د وړاندے نه خط و کتابت روان وو ـ ولے د کوهاټ په قلا د کامرانۍ د بیرغ رپولو شوق دریاخان د مقرره وخت نه وړاندے په تاتار کولو مجبور کړو ـ د دغے حملے په نتیجه کښے دریاخان د بده مرغه شکست وخوړ او هم په دغه تاتار کښے د مغه خیل د ړور تاتار خان سره د کمونو یا تو تسلوکسانو مړشو ـ خوشحال خان چې د دریاخان د شکست نه خبر شو نو د ړو لمبے خو یے یقین نه راتلو ـ ولے په دغه حقله خیل چې د دریاخان خط هغه ته ورسید نو خوشحال خان ډیر نه هیر شو ـ

دریاخان بخپل دغه خط کښے خوشحال خان نه د لښکر امداد هم

ګوښتې وه ـ اګرکه دَ دریا خان په شکست هغهٔ ته لویه صدمه ورسېده
بیا هم هغهٔ دریاخان ته څه سواره ولیږل چې کوهاټ سره نزدې دَ
ګدائي خیل بنګښو څه کلي یې وسول ـ دا حادثه په تاریخ مرصع
کښې دا سې بیان شویده :-

" دریاخان لره چې دما خطونه وو عمل مصلحت
ئې دا وکړ چې دَ نوښهر کوټ فلانه مات کړ ـ
امیل خان شجاعت پېدا کړ ـ زهٔ به ګوښې په
کوهاټ ورشم ـ چې دَ نوزجا نوم راسره نهٔ وي ـ
دا فتح دِ ما په نام شي ـ ارلجه بند دَ کوهاټ هِندوې
به آفریدي را وکړي ـ وعده دِ ما ددهٔ لا اختره
دې درې څلورو ځې بچوا راغې ..........

......... دخدائې رضا نهٔ وه ـ دریاخان
پرېږه خطا وخوړه ـ بیا ځوانان دَ آفریدو پرېوتل
پتر دَ دریاخان دې ورپرېوت ـ لوئې قباحت دشه
آفریدي مات شول ـ سل کسه کم ونیا یات دوی
مړي بچایې پاتو شول ـ" ص ۲۱-۳۲۰

دغه نه پس خوشحال خان کوشش وکړو چې دَ خټکو او اپریدو
مشترکه لښکر په کوهاټ حمله وکړي ـ دلې دَ ځنو بدخواهو دَ بد
خواهئ په وجه خوشحال خان دَ خټکو مکمله مرسته حاصله نکړې
شوه او دِ کوم لږ دېر لښکر چې د دغه مقصد دپاره راجمع کړې شوې وو ـ
هغه کښې ورشو او په کوهاټ حمله پاتې شوه ـ خوشحال خان دَ

کوهاټ په جنګ کښې د مړو په حق کښې دریاخان له "سنده بسته" کلی ته لاړ. هلته په یوه جرګه کښې دا فیصله وشوه چې خوشحال خان دِ هم دا پرید وسره تیراه ته لاړ نشی. دغه ورځو کښې دَ دغه بال بچ په نظام پور کښې میشته وو. البته خپله میشته (دَ کوهړخان مور) ئې را دَ غوبسته او "تانو" کښې ئې خوږ ورځې واړولې. بسته یې تیراه ته کوچ وکړو. تیراه کښې د ربیع الاول نه تر جمادی الثانی سنه ۱۰۸۵ه دَ خلورو میاشتو تیرولو په دوران کښې یوسفزو ملکانو خوشحال خان ته د سوات دَ دورے بلنه ورکړه. خوشحال خان دَ یوسفزو ملکانو[1] خطونو خپلو ملګرانو ته دربه ګنړه کړل او دَ جمادی الثانی په آخر کښې دَ تیراه نه دَ سوات دپاره کوچ وکړو. په دغه حقله خوشحال خان لیکی۔

" خلور میاشتے مے هورے تیرے شوے۔ آفریدی واره
په نیه طریق راغرسیدل۔ دَ یوسفزو دَ ملکانو
کنبل را پسے راغلل چه ته دلے راځه .........
......... په آخر جمادی الثانی د تیراه نه دَ یوسفزو
په لوری روان شوم۔" (تاریخ مرصع ص ۳۲۳)

د تیراه نه چه څه وخت دَ نه خپلوا پرید وعلاقے بازار ته ورسیدو۔ هلته یې ایمل خان ولیدو چې تیراه ته روان وو۔ ایمل خان ورته په بیرته تیراه ته د واپس کیدو دپاره ووے وے خوشحال خان ورته په جواب کښې ووئیل:

"که زه پوهیدلے چه ته به راځے۔ زه به دِ تا را تلو ته معطل شوم۔ اما اوس روان یم۔ آفریدو ډیر ستړو کړم۔ ستون نه شوم که اوس جاړ زم څه لو عیب دے۔"

---

[1] ملک عبدل، ملک اختور او ملک طاسے

خوخبرے مو سره وکړے - روان شوم - مړ پائے ے
هر کدام تہ ورکړ - دَ خټکو پہ لاس دَ ایمل خان سري
راسره دے کوم راغلم -" ص۲۲۳

خوشحال خان دَ ډیرے نه مومند وته او دَ مومندو نه دَ "پښتونخوا" پہ لاس
مُلاکوړ ته لاړو - دَ هغځایه دَ "چندی" پہ لاره "تورې" چه دَ اتمانخیلو علاقه
ده ته ورسیدو - دَ هغه ځایه دَ خټکو سیمے اوبیا "رستم" ته ورسیدو -
"رستم" کښے ئے خو میاشتے واړولے - خپل یوبل اهم اثر " بیاض نامه " ئے
هُم دلته ولیکله -

دیوسفزو پہ سیمه دَ خوشحال خان خه یوکال[2] دَ یره شوے وه - تردغه
وخته هغه دَ تذبذب پہ کړ لیچو کښے دَ خپل متن پہ حقله تردغه حده
راسیدلے وه - چه :-

" ملک عبدل ملک اختر وغیره ملکان دا پہ تازه کښی مالره
راغلی وو - بعضے قرار شوی دی - که خدائے کا زرپه سوبَ
لوه وخیزم - تردا یورے خوبے دیانه وبندکار بل هیڅ کار
ونه شه چه خه زره مے پورے خوښ شوے پس له دے په کورو
چه خه وشی مور چه له تیراهه دیوسفزو پہ لورې
راغلو - دَ ملک همزه پہ سبب یوکال دا دے عبث راباندے
تیر شه -" (خوشحال خان خټک)

خورا حقیقت دے - دکوم مقصد او مرام دَ پاره چه خوشحال خان یوسفزو ته تلے
وو - هغه مقصد هغه ترلاسه نکړے شو - دَ خوشحال دردغه ناکامئ وجه خدائے بخښلے کامل مومند

---

[1] ورنګار نامت دم - باز نامه نظم ے هورته دُوئیله (خوشحال خان خټک)
[2] نن تاریخ چه شپږوم جمادی الاول سنه ۱۰۸۲ عفتر پوره یوکال دِ ما پہ دا ملک وشه -
(خوشحال خان خټک)

د یوسفزو ملکانو په خپلو کښې تربور ولي او تربګني بیانوي۔ دغه یوسفزو کښې د یو لښکر د تیارولو په مقصد کښې د قولونه لوئے خنډ و نه حکومتي ایجنټان او د خوشحال خان خیل او ښے ملک حمزه یا تیږے هم وو۔ خوشحال خان خپله هم د دغه ضمن کښې یو بل ځائے وائي :-

” بیا سربلند خان له لښکره سره له حضوره راغے۔
قصد لري چه مکرم خان وغیره امرایان چه په باجوړ
دي۔ ورځو به را خلاصوو به ئے۔ ایمل خان او دریا
خان ورته تیار ناست دي۔ ما و ته ئے کتیل را ستولي
دي۔ ملک عبدل، اختري، طالع مالره راغله
چه مونږ هم د همزه په سبب ترتاپوړ مخ توري
یو۔ دلاسه مو لښکر وغیره هیڅ ونه شه او س حمزه مخ
تور کړ۔ مغلي شه۔ خوئے ئے لښکر کوټ لره ور استوه۔
او س هر چه ته وائے هغه به کوو۔ زه هم د دوی په مصلحت
دائم سوات لره درومم۔ هر چه د خدائے رضا شي۔ هغه
به وشي “۔ (ص ۳۲۷)

سوات ته د سیدلونه پس مصلحت خو دا وو۔ چه خوشحال خان د خپل مقصد له مخه غیر ضروري بلکه تربوحده ځنې ضروري خبرے ئے هم په خاطر کښې نه دي راوړے او د خپل ستر مقصد د پاره د عقیدو په بحثونو، اعتقادي مباحثو او ئے وخته نکته چینو کښې د ننبتو په ځائے خپله ټوله توجه او کوششونه ئے د خپل مشن د تکمیل په لړ کښې صرف کړے وے۔ او نور د هر قسمه خبرو ته ئے هډو څه اهمیت نه وے ورکړے۔ ولے بيد مرغي دا ده چه د اصل مقصد په ځائے

خوشحال خان دَ اخون درويزه په کتاب "مخزن الاسلام" نکته چيني شروع کړے او
وئيل به يې چه دَ کربلا دَ حادثے [۱] او اهلِ بيتو دَ حُب په حقله دَ اخون درويزه
خيالات دا اعتراض قابل دي۔ دغه وخت سوات کښے "مخزن الاسلام" دَ
عقائدو سند گڼړے شو۔ شيخ مياں نور [۲] چه دَ يوسفزو مذهبي راهنما
دو۔ هغه ته چه دَ "مخزن" پحقله دَ خوشحال خان دَ خيالاتو پته ولګيده، نو
دَ اخون درويزه سره دَ عقيدت او دَ حکومت دَ يو خيرخواه په حيث
هغه دَ خوشحال خان خلاف پخپله پروپيګنده دَ سوات فضاء دا سے زهرناکه
کړه۔ چه دَ هغے له اثره سوات کښے دَ خانه جنګئ دَ خطرے سره خپله دَ خوشحال
خان سرته هم خطره پيښه شوه۔ کاش دغه وخت هغه دجذباتو په ځائے
دَ اعتدال او تدبر نه کار اخستے وے او کم از کم دَ مذهبي او عقائدو له بحثونو
يې ځان نه غورے وے۔ اګر که د سوات ځنو ملکانو لکه مياں خان، مانکی
او سنګر ورته هم وئيل۔

---

سا[۱] اوس دے هيڅوک پر يزيد لعنت نه وائي۔ مګر له کمراهانو چه په رفض کښے غرق
دينه بيځده۔ دوي وائي دے د حسين په مرګ راضي نه دے کافر شه دا خبر
بے هوده ده۔ وبے صحيح خبر دغه دے۔ چه يزيد اهل قبله وو۔ مصلي وو۔
دولس امراويے پر قصاص کړه۔ دَ امير حسين په مرګ دے ناراضي وو۔ کښوک
په تيغ جبله دَ وژلي تحقيق اجل ئے له ازله هم دغه وو رسيدلے۔ (مخزن ص۵)

سا[۲] پوهاند حبيبي صاحب د کابل چاپ سوات نامے په مخ ۳۳ د شعر ۱۹ د وضاحت
دپاره په حاشيه کښے ليکي "مياں نور دَ يوسفزو بے علمه تش په نامه ملا عوقد
پير وو۔ او د مغلو په تونګ يے د پښتنو آزادي غوښتونکو لاره وهله"

چه ترمیان د موسنانو شدّت بد دے ‏ ‏ بل ستا نور غرض ترد ادعویٰ ارشد دے

ته یه ننګ دَ پښتون راغے ترسواته ‏ ‏ غورځکا نړهٔ کړه دَعالم به کمه زیاته

په دعویٰ یه درست عالم سرګندړشی ‏ ‏ دلښکر یه تولو ل یه فساد ګډ شی

زما هم یه دا مطلب باندِ نظر وه ‏ ‏ بل مقصود ے ونظر ته مختصر وه

خو با وجود دَ دے چه " بل مقصود ے و نظر ته مختصر وه " بیا هم دَ مقصود

کوهر دَ ترلاسه کولو یه ځائے دَ هغهٔ لالا سه دا سے پریوتو، چه دَ ترلاسه

کولو ئے هیڅ امکان پاتے نهٔ شو. خپله دَ هغو ملکانو دَ سرخطره هم را

ولاړه شوے وه - چاچه خوشحال خان ته دَ دورے بلنه ورکړے وه. هم دغه

وجه وه چه ملک میان خان، ملک ماکی او ملک سنګرد لنګر ختک

کلی ته چرته چه خوشحال خان قیام درلود، ورغلهٔ - دغه وخت خوشحال خان

دقوت دیوے وَنے لاندِ آرام کولو. دغو ملکانو هغه را ویښ کړو - او یه خندا

ئے ورته وُوے . لکه چه خوشحال خان ختک خپله وائی - ـــــ

یه خندا ئے راته وُوے دا خبره ‏ ‏ اوس نرو یا سه خوشحال خانه ورور

یه درست سوادِ غوغا کړه کړه ته خوب کړے ‏ ‏ نهٔ دِغم نهٔ دِ پروا، نهٔ تلا تو ب کړے

میان نور درلوه راغے ناست یه رود دے ‏ ‏ خبر ټولو لوه راغلو زمونږ دور دے

چه دعویٰ دَ چا یه میغ کښے تتی بنیاده ‏ ‏ ملکان ئے سره ته غوري له فساده

یا ورځه اوس میان نورونه جواب کړه ‏ ‏ یا منظور دَ درویزه مخزن کتاب کړه

دغه هم یوه موزونه موقع وه - چه خوشحال خان دهوا رُخ خپل کړے وے

او دیوے دا سے حکمت عملئ نه ئے کار اخستے وے چه نه سیغ سوزیدلے وے

او نهٔ کتاب - دپښتنو دَ مذهب سره دَ والهانه عشق دا حساس نه دغفلت

په وجه دغه زری موقع هم هغهٔ ضائع کړه - د مذهب په مقدس نوم د پښتنو

سیاسی تشکسټونو دا لیسے نه نخیر دا کړی هم دَ ځینو نورو وجوهاتو سره سوات کښے دَ خوشحال خان دَ ناکامئ یوه لویه وجه او "سوات نامه" د دغه ناکامئ بازگشت وګرځید و - په ځایځ د مصلحت خوشحال خان دا اخون درویزه له کتابه صفا انکار وکړو - او هم د دغه انکار په نتیجه کښے خوشحال خان او شیخ میاں نور ترمینځ یوه مناظره وشوه - اګرچه په قول دَ خوشحال خان په دغه مناظره کښے شیخ میاں نور پړ شو، دَ دوارو ترمینځه صلح صفائی وُشوه - شیخ میاں نور د آینده دپاره د مغلو سره دَ سازباز نهٔ کولو لوظ هم وکړو - ولے بیا هُم هغه په خپل قول او اقرار ټینګ پاتے نهٔ شو - په دغه ضمن کښے خوشحال خان وائی :-

وَ مغلو ته کښل چه شیخ میاں نور کړه ماوے نور دا هسے مکړه دهٔ منظور کړه

وے چه نور مے له مغلو نه توبه ده هرچه تنګ د پښتنهٔ چارے هغه ده

دَ دُنیا خبره نهٔ ده کار دَ دین دے نه مازرهٔ د مومنانو سره سپین دے

زما نه وعده به نه بنتیا د دهٔ دَ نه وعده دَ میاں نور سره مے وشوه هسے روغه

شیخ میاں نور چه خجل د رغلے تر کوره په دا خپل وئیل پښیمان نشهٔ را نشهٔ کوره

کله ناسته په خلوت کښینی فقیر شی کله سور شی په حرکو کوځو امیر شی

د مغلو سره پټ کتابونه پښتنو سره پښتون به حکمتونه

دغه شان په ځایځ دَ خپل مشن دَ تکمیل په بے ځایه او بے مقصده بحثونو او نکته چینو کښے پریوتلو نتیجه دا شوه چه خوشحال په سوات کښے داوو میاشتو تیرولو نه پس مند نړ وته لاړو - دَ سوات نه دَ دَهٔ خصتیدلو نه پس اکثر کله وه وسټو بیا یوسفزو دَ خوشحال په مرسته یو لښکر تیار کړو او خوشحال خان پښے مندنړو علاقے ته ورسید - ولے دا د خوشحال خان دَ هغه خوب تعبیر نهٔ وو - کوم چه هغه په تیراه کښے لیدلے وو - دَ یوسفزو دَ لښکر سره مندنړ هم

خیل یو لښکر تیار کړو۔ دغه مشترکه لښکر شهباز ګړهے سره په بادشاهي فوځ حمله وکړه چې په نتیجه کښې یې د یوسفزو او خلیلو خوا د شا مغل او د راجپوت لښکر کوټ بخشي میرهزاره له منځه یوړې شول۔

دغه نه پس بیا د خوشحال خان طرفدارانو "غله ډېر" سره نږدې په مخالفو کوچرو حمله وکړه۔ افضل خان خټک د تاریخ مرصع په مخ ۴۰۵-۴۰۴ لیکي:

" یو څو سوارهٔ د مرخانه دروازے لره د لښکر کوټ راغلهٔ۔

میرهزاره نومیده بخشي د لښکر کوټ وه۔ له نوځ سره ورووت۔ په یوه د پریانږ د شهباز ګړهے تر څنګ ئې جنګ وکړو۔ میرهزاره یې د سلو خلویښتو سورو سره په شهادت ورساوهٔ۔ راجپوت پکښې مړهٔ شول۔ مغل یې کمزوری کړل۔ نو رله بیئی پیږ او له سیکری لښکرها روان شهٔ په شهباز ګړه یې وارونل۔ په سیا د مغل فوځ تندی وکړه۔ توپونه یې هم ورته راوویستل راووت۔ یوسفزیه هم میدان ته راووتل۔ اما مغل قابو ونه لید۔ ځو لو یو نه ئې پریښول په کوټ ننه ووت۔ د مغلو کم قوتي د یوسفزیو ته معلوم شوهٔ لویې خان د یوسفزیو سره په هغه ځایې په سوارۍ کښې مصلحت وکړ۔ چې کوهران د لښکر کوټ د ضلع پغالی ډېر مېشته دي۔ په جمع سورلی د یوسفزیو د منده نو یو به چې پرے ورشو چه مال یې تاراج کړو۔ او دوی په قتل ورسوو۔ دا سورلئ را جمع شول او

پیاده یې په شهباز ګړه پرېښوول۔ سورلنی په بحر
سوارهٔ شول دغالی دیر دپاسه ګوجران له بېشماره
مال له سره بدرقه دَ مال وو۔ آخر دَ یوسفزیو فوځ
پرې خبر شو نه شو۔ جنګ پېر وشو۔ مال یې په آسانه
نهٔ ورکاوهٔ۔ خدایې تعالیٰ دلوی خان ترخولے دوبیل
چه دما دلته دیره دکه۔ پیاده په راوغوارم۔ بې قتل
بهئے ورسوم ۔ بنه بنه سوارهٔ دَ یوسفزیو چه وو۔
هغو ووے چه به پیاده راغوارو۔ موږ به پرې
یوځلے حمله وکړو۔ نور حمله یې پرې وکړه کم و
بیش تیر صوګوجران یې مړهٔ کړل او بے حسابه
غوا او میښے یې راوستے۔ بس له دے د لښکر کوټ
قلعه بند نه شوه۔ هره ورځ به سوروتاخت و تاخت
کاوه۔ امّا هیڅوک ورته راوتے نه شول۔"

لکه عام طور حکومت دَ خپلو مخالفینو دپاره په عوامو کښې د هغوی
خلاف دَ تذبذب او مخالفت دَ راپورته کولو دپاره دَ حالاتو مطابق
قسم قسم حربے استعمالوي ۔ هم دغه شان شیخ میاں نور هم دَ خوشحال خان
خلاف سوات کښې دَ ناکامولو په غرض لګه چه خوشحال خان خپله والی
د رافضي غږ کړے وو۔ خوشحال خان دغه حقیقت "سوات نامه" کښې دا سے
په ګوته کړے دے ۔

| | |
|---|---|
| راشه وا روه په دا هو مره قباحت | چه په ما باندې ساز کړه تهمت |
| زه چه چون په اعتقاد کښې پاک کښې یم | په کندن د رافضي دَ بیخ کښې یم |

رافضي يې په دا هسې اعتماد کړم په درست سوات يې په تکفير رفض ياد کړ کنه هم د غه حقيقت په غور کتلے شي نو بهرام خان سره هم د توتکي په معرکه کښې په خوشحال خان د رافضي غږ شوے وو - دا واقع خوشحال خان په دغو الفاظو بيان کړيده :-

"چې مور د توتکي په دره د مغلو سوارهٔ پلي راته
په کمر ولاړ وو - د غښتو شيعه يې را باندې وکړه
يو بد بخت خو په قصد زه وېشتم، زغ په ئې
را باندې وکړه چې اے رافضي وليو رافضي وليو رافضي
بيا ديکې د نرې يو يو را خيل خير آبادي سوار ولاړ
وو ـ" (تاريخ مرصع ۳۰۸)

د خوشحال خان په مذهبي عقيده د رافضي دا تور د هغه وخت د اولسي مذهبي عقيدے نه يوه ناجايزه سياسي فائدهٔ اخستل وو - دا پروپيګنډه کم نه کم د بهرام خان خلاف د "توتکي" په جنګ کښې په ښه زور او شور وه - کيدے شي چې د حکومت له خوا اخربه :ـ

د افغان په ننګ مې وتړله توره ننګيالے د زمانې خوشحال خټک يم
د اورنګزيب خلاف د اعلان جنګ سره هم د مغلو له خوا د مخالفو سياسي ذهنونو اختراع وي - چې وخت په وخت د دغه ملي قهرمان په خلاف د "توتکي" له جنګه وراندې هم پکار وړلے شوے وي - خو بيا هم د سوات د دورے د مقاصدو په دغه فيصله کن مرحله کښې د دغه پروپيګنډے مات په "مخزن" د انعقاد په ځايې په بله کومه طريقه هم کيدلے شو باوجود په دغه حقيقت د پوهيدو چې شيخ ميان نور کيا د ے د

حکومت سره راز اولاړلړي ـ دَ خپل طبیعت په تُندئ به ځانئ
د قابو راوستلو، هغه په جذباتو کښې دَ اعتدال نه ورتېر شو ـ
چې نتیجه ئې مخ په نیغه پخپل مقصد کښې د ناکامئ په شکل
را دوساره شوه ـ تأسفاً چې دغه وخت د شیخ میاں نور دَ پیشرد
هغه کردار هم دَ خوشحال خان په نظر کښې نه وو ـ کوم چې د
روښانیانو د قائد ملا میر په خلاف هغه وخت دَ حکومت په
مرسته دَ حکومتي لښکرو په قیادت دَ " مینئ " په جنګ کښې
لوبولے وو ـ کوم چې دَ آزادي خواهو او مغلو ترمینځه شوے
وو ـ او له دوا ړوا ړخونه پکښې په زرګونو خلق مړه شوي دو ـ

همیش خلیل

اکتوبر ۱۹۸۶ء

بسم اللہ الرحمن الرحیم

۱ ۔ پہ دوران دَ شاہ جہان بادشاہ ځوانی وہ
میټہ دَ زړہ هره کامرانی وہ

۲ ۔ سرائے لہ سواتہ فاصلہ لری دیرش کروہ
چہ ورکوز شے تر دریا دَ سوات ترکوہ

۳ ۔ درے خیزونہ دے د سوات د زړہ پہ یاد وو
نورے هر څۀ پہ حساب و ماتہ باد وو

۴ ۔ بوَ خسران چہ پہ حضور د وادۀ کار دے
بل هوا ترنرگس زار درېم ئے ښکار دے

۵ ۔ زہ نوکر وُم ، یوسفزیو نوکردان وو
ځکہ ورغلہ تر سواتہ زما گران وو

۶ ۔ ملوخان دَ وادۀ چار زما پہ زړۀ کړہ
زۀ پہ کور د صدر مورئے راوادۀ کړہ

۷ ۔ تماشہ د نرگس زار وَہ ، کۀ دَ ښکار وَہ
پہ پیری کښے راپیرزو دَ کردگار وَہ

۸ ۔ سوات دے وارہ سکد یائے کړہ سر تر پایہ
خبردار ئے شوم لہ هرہ هرہ ځایہ

۹ - ملک دَ سوات دَ ملوکانو دَ نشاط دے
په دوران د یوسفزیه وران رباط دے
۱۰ - و شمال وته ئے غر بلورستان دے
شرق کشمیر، غرب ئے کابل او بدخشان دے
۱۱ - هندوستان وته تورغر لری بد عناشی
وَرخاتهٔ پرے د لښکرو په غوغا شی
۱۲ - تر کابل نه ئے هَوا د دړي ښهٔ دہ
د کابل هَوا ترخه ددهٔ خوږه ده
۱۳ - په هوا کښے د کشمیر په آب ورنگ دے
حیف دا چه کشمیر ارت دے، سوات تنگ دے
۱۴ - طولانی دره تر دیرشو کروهو ډیره
عرض ئے دوه کروهَ ، یا، یو یا تیروبیره
۱۵ - له مشرقَ ئے دریاب دروی مغرب ته
په کج راست ئے وئیل مهٔ کوه کاتب ته
۱۶ - په هر کلی په هر کور کښے ئے ولے ځئ
هم ئے خوري، هم ئے هر لوری ته غلے ځئ
۱۷ - نهٔ پرے لار شته، نهٔ بل کار شته نهٔ بل سود دے
خو یو کنج گوښه له خلقو، غله بُود دے

۱۸- کله کله پکښې هسې ارزاني شي
چه په دوه تورو د شلو مهماني شي

۱۹- هم سړے اوبهٔ چینې لري هم واورے
نهٔ په سوات بادِ سموم شته، نهٔ ګرد خاورے

۲۰- هر هر ځائے د سوات د ملک ملوکانه دے
بے سرداره بے حاکمه ، کوره خانه دے

۲۱- ملکانو عیش عشرت دے پکښې کړے
خوهنه هنر کښې نهٔ دے دا وګړے

۲۲- پکښې لوے منارے شته ، بت خانے شته
لوے کوټونه ، حویلئ دَ زمانے شته

۲۳- دَ میوو او دَ ګلونو دَ بوستان دے
دَ ملوکٔ لائق په وخت دَ تابستان دے

۲۴- دوه خیزونه دَ سوات تحفه تر واره
ګل رخسارے نے کافرے ، باز دا دواړه

۲۵- ملک د سوات چه درست لائق دے دَ باغونو
یوسفزیو برابر کړ ، له راغونو

۲۶- د سوات په ملک کښې ډیرے حویلئ دي
په هر کور کښې ګلعذارے سهیلئ دي

۲۷۔ په هر لوري فوارے دی ، آبشارو نه
ښۀ نیارونه ، ښۀ سرایونه، بازارونه

۲۸۔ هسے ملک، هسے هوا ، هسے جویونه
نۀ ځایونه ، نۀ باغونه ، نۀ بویونه

۲۹۔ کال په کال دَ ملک په هِسک کاندی باختونه
بے لښکرو په خپل ځان کاندی تاختونه

۳۰۔ ولے نۀ دی دیر چرکین لري ځایونه
آلوده، گنده ، بدبوی لکه سرایونه

۳۱۔ کۀ په سوات کښے په پسرلي دی، وریځے ماښې
د منګورو ، دبرورو ، ویل به چا شي

۳۲۔ پکښے دره ځله تبزن په برورو شوم
هر هر ځایۓ دانے دانے په خومورو شوم

۳۳۔ خوسري هومره ئے سپی په هره خونه
په انګنړ کښے ئے چرګان ګرجي سګونه

۳۴۔ درسته خونه ئے نیولے په ګندوانو
په ګنده روزګار بدتر دي تر هندوانو

۳۵۔ بائیزی ئے روزګار کاندی چه سیالان دی
خواجوزی ئے نورخۀ نۀ دی بقالان دی

۳۶۔ په هر کال ئے دوځو تیرځو بازښول شی
کافرکیه ئے په شکل و شمائل شی

۳۷۔ کذابل ښکار دَ سوات په ملک کښے په مقدار دے
په هرنوري ئے تل، دل د ښرکو ښکار دے

۳۸۔ مرغاویه ئے دَ سیند تر سروپا شته
د نااهلو د ټوپکو پرے غوغا شته

۳۹۔ هم کاوزے، بزے، سرزے هم کوتاه پائے
اَمّا وښکے کړے توپچیانو ځنې به وائے

۴۰۔ چه د سوات سره ترلے دے ملک ډیر دے
د یوهٔ سردار تر سروپائے تیر دے

۴۱۔ دَ چترال سرحد د سوات سره قریب دے
غر او سم یې آبادان جریب جریب دے

۴۲۔ وَ چترال وته ئے لاړ د کوهستان ځي
تر چترال په پنځه ورځے کاروان ځي

۴۳۔ درے خلور میاشتے دا لاړ وي ښهٔ روانه
ډیر آفت لري له برفه، له بارا نه

۴۴۔ تلهٔ را تلهٔ د خلائق په دا لاړ کم شي
مگر کار به بدرقه د ملک سم شي

۴۵ ـ يوه لار د هندوکش دَه تُرکستان ته
بله لار دا د چترال دَه بدخشان ته

۴۶ ـ بله لار چه د پټن ځي تر کاشغره
بله لار که په موزنګ ځي لره بره

۴۷ ـ دا خولا ړے په سرحد د هندوستان دی
نورے لاړے په سرحد د خراسان دی

۴۸ ـ يُوسفزيه په شماره تر حساب تير دی
امّا واړه ګاوُ خرُونه دي کهٔ ډير دی

۴۹ ـ د مغل نمکُ ے وخوړ شپږ پيړے
ما دَ زړو ککنے روغے کړے پيړے

۵۰ ـ رعيّت ے يوسفزيه درست ختک وُو
په عزّت او په حرمت کنے ے خهٔ تنک وُو

۵۱ ـ دَ مُغل دَپاره ما تُورے وهلے
پښتنو به راته کړيه ډيرے بشکنځلے

۵۲ ـ کهٔ ورکزي دی کهٔ بنګش او کهٔ يُوسف دی
ديو همه زما دَ تيغ په تأسف دی

۵۳ ـ پښتانهٔ ے په زړکُونو دی وړزلي
په سرُونو به ئې خرهٔ غوايهٔ وولشلي

۵۴ - لا تر اوسه د سروښو نے انبار دے
په اټک په پېښور کښې یې مینار دے

۵۵ - په اوان د اورنګزیب بادشاه په بند شوم
بے تقصیره ، بےګناه درد مند شوم

۵۶ - درے خلور کاله په بند د اورنګزیب شوم
خدائے چې خلاص کړم ، انتقام ته ناشکیب شوم

۵۷ - د مغلو نیست روزګار را یاندِ اور وُه
په محبت نے زما زړګ لکه تور سکور وُه

۵۸ - را پیغاره دَ مغل منصب په زور وه
نهٔ به واخلُ چې منصب نهٔ وه سُورادروه

۵۹ - ناګهانه په دا ملک فساد بُنیاد شهٔ
زما هم دَ تلافي وکار په یاد شهٔ

۶۰ - د فساد کښ یو بخرے وه ، ما اور کړهٔ
اورے پورے دَ اورنګ بادشاه په کور کړهٔ

۶۱ - دریاخان هے د ګچې کټے خلے دے
ایمل خان هے د پګړیٔ نے شملے دے

۶۲ - چې ننګې هے دَ ختک د وراندِ قللے
د مغل را سره مِلے وے سوارے پلے

۶۳- دَ خپل وچولي په کار زما باور دے
څه وَما وته خاښن خۀ ئے خبر دے

۶۴- چه آسمان، چرخ، و فلک وو، دا په شوله
اورنگزیب بادشاه ویرانه کړه پخپله

۶۵- یکباري ئے په لاس ونیوے ناپسند دے
خو په خود ئے په ځان وکړلے دا شند دے

۶۶- دا همه واړه زما ظاهر باطن دی
پښتانه چه واړه خوښ له ځانه نن دی

۶۷- کۀ مغل سره زما د زړۀ اخلاص وے
خدائے خبر دے، کۀ پښتون لما خلاص وے

۶۸- نن دَ دارو پښتنو په ننګ دلاور یم
دا چه هسے په هر در، هر درنګ ولاړ یم

۶۹- چه پښتون شوم په دا هسے سپینه ږیره
نورسے خدائے مکړه مغل، وائم په ځیره

۷۰- کۀ مغل و ماته سل وائي خبرے
همګی واړه په ما دي خاوړے سرے

۷۱- دا پوهیږم چه مغل لره کۀ ورشم
تر اول یه لا په چاره کښے بهتر شم

۷۲ - مخالف به یو خو ورځې ښهٔ نمانځهٔ شم
پس شا به حرام خور کیدی ښکانځهٔ شم

۷۳ - په تعظیم چه ورته وُدرم د وړانـدِ
اُمرا کان به دَ مغلو ښادئ کانـد

۷۴ - په ورتـلهٔ به بـیا خدمت رانځه غواړي
پښتانهٔ چه سره وتړنو، د یو پر وُیاړي

۷۵ - پښتانهٔ به راته هُم کاندي ښکنځلې
چه ئې لاڼې په ناحق د ننګ وَهلې

۷۶ - چه په زړهٔ کړم دا یو خو خبرے یادے
نورے واړه اندیښنے شی، راته بادے

۷۷ - وَ مغل وَته خـبرے په ورلوز کړم
سر ے پریوزه کهٔ په سر ورته بیا کوز کړم

۷۸ - نهٔ په خپل، نهٔ په پردي یمٔ، خو په ننګ یمٔ
په دا ننګ کښې زوره ور سره په جنګ یمٔ

۷۹ - کهٔ د ننګ پښتانهٔ شته، ساعت هم دا دے
په دا ننګ کښې سر و مال و ملک فدا دے

۸۰ - دا هُم شکر چه مے وُتړله تُوره
نما تُوره په جهان شوه مشهُوره

۸۱ - ورځ په ورځ فتح نصرت تازه تازه شي
کال په کال د ښو مغلو جنازه شي

۸۲ - تر کابله تر اټک، په سم په غرونو
انبارے دي دَ مغلو دَ سرونو

۸۳ - اورنګ زیب بادشاه پخپله رآیت راوړه
که یې زر وو، که یې زور وو، دوی پچا وړه؟

۸۴ - په عزت له هندوستانه راولاړ شه
حبطه خاوړے په سر، په بیرته لاړ شه

۸۵ - پښتنه، شیر کالونه تیر دَدے فتور دي
پښتانه په زړه خوشحال، مغل رنځور دي

۸۶ - عاقبت به وهیچاته سرکنده نه دے
کوره څه شي؟ کار د خُدائے پسند یا نه دے

۸۷ - که حیات په دا دُنیا یم بخت مدرکا
یوسفزیو دَ فساد خویونه دکا

۸۸ - اوده میاشته یم په سوات کښے کرځیدلے
همه وارډ دے عظیم سوکند خوړلے

۸۹ - ملکان به یې رخیل سوکند کوري
په لښکر به هم کی سره ونبوري

۹۰ - وَ مغل وَته به نن کړم ، اټک بُوله
ملک به خلاص کړم د مغل له غاله غُوله

۹۱ - د اټک ، د پېښور ، د کابل کوټ ځي
لوئ هلک کوتونه واړه به دا چوټ ځي

۹۲ - به دا کار ، که یوسفزیه بے وفا شي
الوداع ده ، چه زما به ورته شا شي

۹۳ - نور هے ځائ به خوتره ، به لوحانړی دے
که خوک وي ، که نه ناکام د کرلانړی دے

۹۴ - خوشوندے یمُ ، وا به نه وُرم له دکُوړه
مردکي به وار وار وړشي عن تر کوده

۹۵ - که پیوند د ایملخان د دریاخان تښته
د خوشحال ختک سیلوي تر دا میان تښته

۹۶ - ورځ به ورځ به کار بهتر د پښتانه وي
دا نن کار به د مغلو ، ښیا نه وي

۹۷ - که نور واړه پښتانه د مغل آش خوري
چه زمونږه وَرته شاده ، واړه شاشخوري

۹۸ - خدائ د نه کا ، که له مونږه یوکتدوُ شي
بیا به هسله به چا جور د مغلو شي

دا دَخانِ کلان قصیده دَه، په احوال دَ
جنگ جدل چه دَ مغل له مخالفته وَه -

۹۹ - په دا کار کښې چه جا وَوهلے تُورے
په مومندو باندِ مښه میاندے پُورے

۱۰۰ - په شینواري آفریدي باندِ رحمت شه
په صافیو په غلځیو برکت شه

۱۰۱ - چه مغل د جګدلی تا ښره نیوله
نو غلځي نښه په پیوند تُوره وَهله

۱۰۲ - دَ خټکو نه یو لک خټک داخل دي
نور خټک واړه تر اوسه لا باطل دي

۱۰۳ - په ورکزی و په بنګښ باند نفرین دے
له دے وارو اُولسیوے زړه شین دے

۱۰۴ - یُوسفزیه کڼ وَهلے نۀ دَه تُوره
په هُوئ هُوئے شرکت لري بلائے دوره

۱۰۵ - کۀ فرصت وۀ له اوله تر آخره
دَدے کار به درته نظم کړم خبره

۱۰۶ - بیل بیل کتاب، خوځزه سره ساز کړم
حال به شرح تر انجامه تر آغاز کړم

۱۰۷ چې په دا فتور کښې شوی دي جنګونه
ترکابله خرابي په فرسنګونه

۱۰۸ اوس به حال د سوات د ملک درته بیان کړم
د دې خلقو کاروبار به درعیان کړم

۱۰۹ چې د ننګ په کار کښې شي په ما داچارې
د ناکس او کس هموارې ناهموارې

۱۱۰ پښتانهٔ واړه نادان د جهل کان دي
کهٔ د واورید دیوسف لا په بل شان دي

۱۱۱ ما د سوات د عالم ښهٔ ننداره وکړه
د هرهر فریق هم پته ، ښکاره وکړه

۱۱۲ خو په خُله کلمه لولي مُسلمان دي
په وعده په عهد ، قول بې ایمان دي

۱۱۳ دلبر سود ، دلبر بهبود ، دلبر مقصود دي
په اندک له تاخوشنود ، هم ناخوشنود دي

۱۱۴ د خپل سود دپاره کرمه یارې کاندی
چې یې سود نهٔ وی ، بې شرمه یاری کاندي

۱۱۵ خبردار کله په شرم ، په کرم دي
همګي عبد الزوجه ، عبد الدرهم دي

۱۱۶ ۔ هم بې کبر، هم بې حکم، هم ئې نازوري
په هرخه کښې دعوه تو، ساز ناسازوري

۱۱۷ ۔ یا ئې شیخ، مُلا په مکر په افسون خوري
یا ئې مال بخیل پردي، مکر خاتون خوري

۱۱۸ ۔ سیوائې به ئې د لور چه لونړو پلوری
په دا خو توکه کښې غرق دي مخ توري

۱۱۹ په کم اصل، په بد اصل نظر نهٔ کا
د ټنګو په لالچ، خوراؤ لوروادهٔ کا

۱۲۰ ۔ آشنائي در سره کا، د زړهٔ د پاسه
خپل ساتي، طمع به کاندي ستاله لاسه

۱۲۱ ۔ تر روپئ به د نقصان کا په روپئ
آواره کا، درسته غوا، د غوا به پئ

۱۲۲ ۔ په تمیز کښې سراسر واړه مبهوت دي
چه ژاله ورته ګوهر، شبه یاقوت دي

۱۲۳ ۔ کهٔ په کور کښې خزانې لري د زرو
بیا خوارهٔ خوري، په شرشمو په ډنبرو

۱۲۴ ۔ د ادب په کار کښې هسې ناهموار دي
کشر مشر، تور او سپین، په یوه شمار دي

۱۲۵- درست عالم یې دَ ګوارو په شماره دي
تر تاجکو لا په زیست کښې آواره دي

۱۲۶- کور په کور، کندی کندی سره بد نیّت دي
بې هوده له ځایه خوښ، بې برکت دي

۱۲۷ نصیحت یې درته وائم لما زده کړه
چې باور یې کړه په "نه" په "هوئې" مکړه

۱۲۸- هغه هو چې یې نامرد سړے لرینه
تر هغهٔ هو ښکاره نهٔ مزه کوینه

۱۲۹- مخامخ یې نور څهٔ نشته بې اقراره
پسِ پشا یې نور څهٔ نهٔ زده بې اِنکاره

۱۳۰ - کهٔ باور یې یا په هو، یا په کرم کړې
دَ سِفله سړي، په ځان باندِ ستم کړې

۱۳۱ په درست کال یې ګټه نهٔ خیژي له کاره
بو تیمار دي د اوبو په شالی زاره

۱۳۲ یا دَ سوات خاؤرے کنده په کاردکښت دي
یا له ځایه یوسفزیه بد سرشت دي

۱۳۳- ویش قسمت چې دَ وفا دَ مروت وو
یوسفزیه په دا کار کښې بدَقسمت وو

۱۳۴۔ پُول ، پیسه پکښې دَ وارو، دین مذهب ده
اندیښنه ئې خود دَ سیم او د ذهب ده

۱۳۵۔ چه یوه پیسه په څهٔ نوعه دوه کیږي
هُم هغه کا ، هیڅ په بله نهٔ پوهیږي

۱۳۶۔ دَ دَنیا په کاروبار کښې هسې غرق دی
نو اوُ ښځې ، لویې ، هلک ئې تابه فرق دی

۱۳۷۔ یو عالم دے ، بړے سبا شی ، هم بیګاه شي
کهٔ په خوب رے ئې له بندګۍ ئې لاس کوتاه شي

۱۳۸۔ پکښې نه چه یوسفزے په دا طریق دے
چه په سوات کښې موندہ نشی ، کوم فریق دے

۱۳۹۔ دَ میلمه ته ست ، په بړبړ راشه نشته
نهٔ د تېږې چار ، نهٔ شناخت ، مهر دزرهٔ شته

۱۴۰۔ اصَیلان پکښې بُرده غوندې خرخیږی
هیڅوک نشته ، چه په داد ئې ورسیږی

۱۴۱۔ کهٔ مظلوم چرے مُلک وَته داد خواه شی
چه یوه روپۍ بل ورکا ، رُوسیاه شی

۱۴۲۔ کهٔ په خُلهٔ کلمه لولی ، مسلمان دي
په عمل کښې یوسفزی ، سکه دَ دان دي

۱۴۳- تولا که تبرا کا د دین ننگ دے
په دا دارو کښې دَ هر سړي زړهٔ سنګ دے

۱۴۴- که هندو کلمه ولولي ، مرتد شي
خوک به نهٔ وائي، چه دا په دین کښې بد شي

۱۴۵- هیسے خلاص دی له ادبه ، له تمیزه
لکه داهٔ عربي ، هندی کشیزه

۱۴۶- په هر کار کښې ناهموار ، نافهمیده دی
نادیده دي ، نادیده دي ، نادیده دی

۱۴۷- یکښې نشته میوه دارے ، باغي وُنے
همګي دَ غره پلوسے دي یا ، غنے

۱۴۸- په وعده په عهد ، قول بے وفا دی
بے ادبه ، بے تمیزه ، ناصفا دی

۱۴۹- دُر ، شیشه ، کانړي ، یاقوت ورته یو شان دی
سیب ، شلغم ، انار بهی ورته یکسان دی

۱۵۰- نهٔ مردانو غوندِ موے نشته کا
سینو زیړو سره تول شي ، مردکی کا

۱۵۱- نهٔ ئے قول ، نهٔ ئے عهد ، نهٔ ئے بول شته
خو دَ دیو رښتیو فش ، دبنګو پول شته

۱۵۲- نهٔ پرِ حکم، نهٔ وچا ځهٔ ورکوینه
واړه ځان لره ګټي، په ځان یې خورینه

۱۵۳- آشنائي ئې خواب وخیال غوند لیدهٔ شي
یا به مثل لکه باد چه وزیدهٔ شي

۱۵۴- مُبتلا به خوخو ړنګه پلیدی دی
مُریدی دی، عنیدی دی، ندیدی دی

۱۵۵- چه نیکان، پاکان ئې دا وي، دا ئې حال دی
له بدانو به یې وایه کوم مقال وي؟

۱۵۶- د بابا د مال پوازې میراث خور دی
نهٔ به تږوردي، نهٔ به مور دی، نهٔ به خوردی

۱۵۷- چه دَ وړور یې جنازه به ګور کښې کښیوزي
کهٔ رضا، کهٔ نارضا، به وُرندار پریوزي

۱۵۸- له قاتله ځان غلط کا، په قصاص کښې
د مَقتُول به ځائې بل ووژني په خاص کښې

۱۵۹- هر مُلا به دا صُحبت ورسره مَل وي
په ښنا دَ یُوسفزیه وِي، کهٔ غَل وي

۱۶۰- دا لا څهٔ دی، چُغ نور قباحتُونه
کور به کور ستره اَختهٔ به شِدّ تُونه

۱۶۱- هومره ملک، هومره آولس، برکت هېڅ
کهٔ یې مال دے، کهٔ دولت، سخاوت هېڅ

۱۶۲- کهٔ پالیز د ختکیو خوک ودان کا
بنځیه و ته یې پرینږدي، زړنې وران کا

۱۶۳- کوم ملک یې هومره نږهٔ، هومره خوارهٔ کا
خپه خلور ورځې، خلور سري مارهٔ کا

۱۶۴- کهٔ سړي یې په صورت لکه آدم دي
په روزګار، په خوئ، خصلت، له دیوه سم دي

۱۶۵- په غلط غلط خوبونو مُبتلا دی
په بد خوی، په بد خصلت، دَ ځان بلا دی

۱۶۶- نهٔ سزا دَ بَدکارانو پکښې کېږي
نهٔ بخیل عقل، په ښهٔ سړي بوهېږي

۱۶۷- چه خوک وُوائي، بد ندٔ دی، هغه ښهٔ دی
چه بَد وُوائي، هغه لا کله ښهٔ دی

۱۶۸- کهٔ په مکر خوک خپل ځان پکښې طبیب کا
خوک به نهٔ وي، چه نبکاره ددهٔ تکذیب کا

۱۶۹- کهٔ په مکر خوک عالم شی، یا درویش شي
خوک به نهٔ وي چه خبر ددهٔ په کیش شي

۱۷۰ - هر مغل چه په سوات راشي شهزاده شي
هر سړی يې د منصب ته آماده شي
۱۷۱ - که د کلي د اولس د تومن بزرګ دي
خو ميلمه ته يې کاته مکر بې چرګ وي
۱۷۲ - خبردار کله په ننګ افغاني دی
کشميری او پکلي وال او لغماني دی
۱۷۳ - دهغو چه نره د چرګ په مرګ رېږ دی
مصلحت د تورو سپينو ورته پلېږ دی
۱۷۴ - ځکه هيڅ په هر جنګ باندې لړی کا
بيا له ترسه جنګ ته نه ځي ځان نړی کا
۱۷۵ - دا يې وار نامردي دی ، هيڅکاره دی
خيراتي ، د جنګ په کار په څه شماره دی
۱۷۶ - آسوده په مال و ملک ، په زر ، دينار دی
د دنيا روزګار يې نه نه ده ، بد روزګار دی
۱۷۷ - نه يې خوان ، نه دسترخوان ، نه چراغدان شته
درسته شپه يې د شونټيو بد ګخان شته
۱۷۸ - چه په تيل ، په دسترخوان يې څه خرخيری
که نردار دی ، هم يې غوښې او بد کيږي

# فصل

۱۷۹ - ملکان خانان یې کل واړه خران دی
عالمان شیخان یې واړه جاهلان دی

۱۸۰ - چه عبدل عبدل بالهٔ شی پکښې کټ دے
اوس بساند کوټه د کلي کهوی خټ دے

۱۸۱ - د جهان عیبونه واړه سره ټول کړه
هغه واړه د همزه دغاړے پول کړه

۱۸۲ - د طالی کهٔ درته وایم یو کالے دے
ډک بنبانک دے دوکړے، کهٔ یا تالے دے

۱۸۳ - د کاچو نمسے نهٔ خان دے، نهٔ ملک دے
کالوچن، دروغژن غښے دَ هلک دے

۱۸۴ - ملکی یې په کرم ده، نهٔ یه توره
به دا دواړه توکه مور ده باندِ بوره

۱۸۵ - کار یې ټکه مسخره، حبطه سپک دے
خوک چه ترپات دے په تپه هغه ملک دے

۱۸۶ - سود حاصل یې یا د ببرو، یا دخواست وي
په هر کلي، په هر ځیم باندِ یې زغابت وي

۱۸۷- دَ ملکٔ ئۓ دَ دفتر پُولے پیښې وي
نورے تورے خاورے تو یُ پہ کُښې وي

۱۸۸- دَ مَلکٔ ئۓ کۂ درے نورہ ونړه سکه وي
پیدري پښې به ئۓ درست رېښه رېښه وي

۱۸۹- یوه بخره دَ ملکٔ وي ، درے د نورو
په کم ، نہایات ئۓ سره جنګ وي پہ سسکورُ

۱۹۰- چه نیکان ، پاکان ئۓ دادی ، حال ئۓ داشے
شیخ میاں نور پکښے د وارو نه والاشے

۱۹۱- اول حال دَ عالمانو درته وا یٔم
بَیا له پسه به میاں نور درته وستایم

۱۹۲- عالمان ئۓ همګي واړه سفیهٔ دي
نۂ عالم او نۂ فاضل دی، نۂ فقیهٔ دي

۱۹۳- چه دَ کنز، دَ قدُوری ، شي ځان مُلا کا
هر حرام ، به بچیل ځان باندِ روا کا

۱۹۴- دا چه کنز قدوري وَلولي اعلیٰ دي
زیاتے تښندے خوهغه کا چه ادنیٰ دي

۱۹۵- نۂ دَ کنز په دقیقوځۂ خبر شوی
نۂ په ځ د قدوري شوندِو بَرشوی

۱۹۶- کتابونه بې سر کیږدي ځان مُلا کا
په هر کلي، محلت گرځي تنگی غلا کا

۱۹۷- کښینی شرع به کوی په رِشوتونو
خان قاضي کا، په غلط رِوایتونو

۱۹۸- وَ هر چاته مَسئلې دَ سخاوت کا
خپله خونه ډکوي، دَ بل غارت کا

۱۹۹- په مَسجد راځي پنځهٔ وخته اذانُ کا
چه زکوٰة، سرسایه نهٔ وي مسجد وران کا

۲۰۰- د میراث مالونه خوري له ظالمانو
نوم په ځان باندِ کښیږدی د عالمانو

۲۰۱- په دا هسې علم برند کښیني ملا شي
وَ عالم نه میراث خور د انبیاء شی

۲۰۲- نهٔ ئې خط وي، نه ئې لوست، همه تگی کا
تعویذونه به کوي، دروغ داری کا

۲۰۳- په دا دروغ ئې خوشی لا زیاته تر روغ شی
خښت، تعویذ، دَعا، هیکل کښې په دروغ شي

۲۰۴- لا زمخور غریب، صحت نهٔ وي موندلې
چه اخون وي اخستو نه وَرنیولې

۲۰۵ - کهٔ په ورکړه کښې به درنګ اوځه تعطیل دی
به غوغا، په شور و شر ئے، قال وقیل دي

۲۰۶ - چې زما په خلقو، قدر و قیمت نشته
د رنځور ے بے تعویذه صحت نشته

۲۰۷ - چه رنځور له رنځه روغ شی، راته شا کا
نور به بیا زما تعویذ، دَ چا په ملا کا

۲۰۸ - دا چه نن هسے آغاز کا سازے بازے
خپل مقصود، مطلب حاصل کا په ناسازے

۲۰۹ - وائئ مونږ ته چه نظر د سترګو سپک کا
خپل ایمان به په دا هومره چارو ورک کا

۲۱۰ - په دا عام وګړي هسے هیبت کیږدي
چه دَدوی په رضا ځی، هر څهٔ به پریږدي

۲۱۱ - کهٔ څوک ترس له خُدایا نهٔ کا غولدول کا
اَسْ به پریږدي زین به باندِ په جاهل کا

۲۱۲ - کوم مُلا چه دَ میاں نُور په حکم دروځي
هُم هغه دَ سوات په ملک کښې سرۓ موځي

۲۱۳ - دا میاں نُور کهٔ د خنزیر غوښے روا کا
مُلایان به باندِ نن رجوره فتوی کا

۲۱۴ - دَ میاں نُور مُفتیان د سوات په ملک کښې دوه دي
الله داد او دوست محمّد دواړه یاوه دي

۲۱۵ - لږ یې علم، لږ یې لوسته، ډېر تقرير کا
چه میاں نوَر یې لمسوي، هغه تزویر کا

۲۱۶ - اوس به وایم له میاں نوَر له حقیقته
چه دَ نورو نه، دے لا دے بدخصلته

۲۱۷ - راشه واوره په دا هومره قباحت
چه په ما بانده یې ساز کړ خَزَ تهُمت

۲۱۸ - زهٔ چه چوں په اعتقاد کښې پاک سُنی یم
په کندن د رافضي د بیخ کنی یُم

۲۱۹ - رافضي یې په دا هسے اعتقاد کړم
په درست سوات یې په تکفیر به رفض یاد کړم

۲۲۰ - د صدیقؓ اوُ د فاروقؓ په عشق کښې طاق یم
دَ عثمانؓ اوُ دَ حیدرؓ بنده قلماق یُم

۲۲۱ - آل اولاد د پاک رسول واړه مسنمه
امامانؑ نبیّان هَم تول واړه مسنمه

۲۲۲ - د یزید پلید په کار بانده لعنت دے
چه دَ آله سره یې کړے شرارت دے

۲۲۳۔ د بد ذات مکر په علم کښې خوی نور شي
حبشي چه په مخ خال کیږدي لا تور شي

# فصل

۲۲۴۔ یو کتاب دے درویزه سره جوړ کړے
چه د سوات خلق یې له علمه دے موړ کړے

۲۲۵۔ نامعقول، مجهول بیان یکښې بے ځایه
یکښې بد د سیّد وایه، یزید ستایه

۲۲۶۔ دا احوال به په بل فصل کښې ښکاره شي
په مطلب نظر لرم چه ډر ښکاره شي

۲۲۷۔ ناګهانه چه زما په نظر کښېوت
په دا حرف په دا وشیل مے نظر پریوت

۲۲۸۔ چه لعنت به په یزید هغه واینه
چه به رفض کښې غوره بے حده وینه

۲۲۹۔ د حسینؓ په مرګ یزید کله راضي وه
بلکه دے دده د خون متقاضي وه

۲۳۰۔ اُمراګان ئے د حسینؓ په مرګ قصاص کړه
زه حیران شوم د یزید په هسے خاص کړه

۲۳۱ ـ بیا یې دا وُو ښکښې کښلي، ده له دینه
چه په آل به رافضي درود واینه

۲۳۲ ـ غه جاهل مُلا چه دا کتاب وه کښلے
ما به دا خبرو دے وه، ډیر بنکنځلے

۲۳۳ ـ مخالځ یې داخبرے کړے نُما ے
چه ته هم سکه رافضي یې چه دا وائې

۲۳۴ ـ رد بَدل ددے خبرے ډیر مذکور شهُ
دا مذکور په ټول سوات کښې مشهور شهُ

۲۳۵ ـ هغه نیم مُلا روان شهٔ وَ میاں نور ته
خس خشاک یې سره ونوستل تنور ته

۲۳۶ ـ شرے لمبے د میاں نور به کور شوے بلے
نهٔ وو خوک چه یې اوبهٔ کړے بانډ تلے

۲۳۷ ـ مُلایان شیخان یې واړه سره ټول کړهٔ
کمه یې واړه به دا وِیراوُ به دا بول کړهٔ

۲۳۸ ـ چا به وے چه دا آخون زمونږ امام دے
درست مخزن پرے نازل شوے په الهام دے

۲۳۹ ـ به مخزن بانډ چه بَد وائي کافر دے
د کافر قتل، به شرعه مُعتبر دے

۲۴۰۔ چاپه دا وے چه لعنت په یزیـد وائی
رافضی دے ، دوازده امام هم ستائی

۲۴۱۔ چاپه دا وے ، نه به تُوره دکُشتن دے
رافضي په سرو لمبو کښې د سوختن دے

۲۴۲۔ چاپه دا وے چه له ملکه دَ ویستو دے
چاپه دا وے چه توبه کړه دَ ویشتو دے

۲۴۳۔ یوه لویه هنګامه شوله برپـــا یه
چه یې زړهٔ ، هغَه خبرے به ما وایه

۲۴۴۔ ملکان دَ یُوسفزیـه ـکه خـــرُونه
به کنډکئ سره ډرلی خُلے ، ســرُونه

۲۴۵۔ نهٔ یې علم، نهٔ دانش ، نهٔ فهم ، پوَهه
خو دوستئ دَ درویزه بانډِ اَنبوهه

۲۴۶۔ په وئیل دَ درویزه عقیـــدهٔ خومره
ـکه عین په آیت، په حدیث هومره

۲۴۷۔ دَرویزه چه بـیان کړے خپل کتاب دے
نوُم یې مخزن الاسرار کړے جناب دے

۲۴۸۔ هر بیَانُ یې ناموُزون ، مجهُول ، بـیرنګه
خالی یاتوله دا نشـه ، له فرهنګه

۲۴۹ - که یوه مصرعه په شل ، بله په سل ده
نامربوطه ، ناموزونه ، په وسیل ده
۲۵۰ - قافیه یې لام او دال سره وهلي
په ردیف کښې یې نون واؤ سره بیئلي
۲۵۱ - قصیده د بوصیري ترجمه کړے
عربي یې تر پښتو مضحکه کړے
۲۵۲ - هر هر بیت د قصیدے چه دُرمرجان دے
په پښتو کښې تر اوربشو لا ارزان دے
۲۵۳ - معمّا د آذري ترجمه کړے
تصوّف یې وعالم وَته نومړے
۲۵۴ - ترجمه د شاه ناصر بوخو اشکاله
و عالم ته جوړه کړے له مقاله
۲۵۵ - مسئلے یې نظم کړي په پښتو دي
درته خه وایم چه څه دي ؟ د لوستو دي؟
۲۵۶ - په دا هسے شان کتاب یې میاهات دے
د جامي ترهفت اورنک ورته ناویات دے
۲۵۷ - گنده پز، اوگنده خور سره جوړیږي
خاص په خاص او عام په عام سرگډیږي

۲۵۸ - په حیرت به واره ګټه وجیچلی
د اخون په مخزن چا ګټه کبنیبنولی

۲۵۹- هر سړے چه په مخزن باندِ خنۀ والی
په دُنیا کښې ترساعته به خوک بالی

۲۶۰- مَلکان ، شیخان یے واړه سره تول کړهٔ
بخیل سحر په افسون یے ګیح او ګول کړهٔ

۲۶۱- القِصّه چه له دَ مغاره نه روان شول
تر پیوله پورے راغلل یک زبان شول

۲۶۲-ملکان راغلل یوه دله
وَ سره ملک عَبدل وهٔ بهٔیره کله

۲۶۳ - یو میارخان وهٔ ، بل مانګی وهٔ ، بل سنګروهٔ
یو سنګر خۀ خو په پوهه کښې بهتر وهٔ

۲۶۴- دَ سنګر ختک په کلی کښې زهٔ ناست وم
فراغت د توت تر سیوري لاندِ ملاست وم

۲۶۵- دا ملکان راغلل زهٔ یے ویش کړم
په لیدهٔ او په راتلهٔ یے پریشان کړم

۲۶۵- په خبندا یے راته وَوے دا خبره
اوس تړو پاخه خوشحال خانه زور وره

۲۶۷ ۔ په درست سوات دِ غوغا ګډه کړه، نه خوب کړ
نهٔ دِ غم نهٔ دِ پروا ، نهٔ تلاتوب کړے

۲۶۸۔ میاں نور درلوه راغے ناست په رود دے
خبرولو لره راغلو زمونږ دود دے

۲۶۹ ۔ چې دعوئ د چا په مینځ کښے شي پُښیاره
ملکان ئے سره تړغوري له فساده

۲۷۰۔ یا ورځه اوس میاں نور وته جواب کړه
یا قبول د درویزه مخزن کتاب کړه

۲۷۱۔ د درست سوات د ملایانو دا رضا ده
چې قبول دِ کا دا کار، فائده هم دا ده

۲۷۲ ۔ ماونے دِین د محمد دے ما منلے
بے قرآنه بل کتاب دے چا منلے؟

۲۷۳ ۔ درویزه نهٔ مجتهد دے ، نهٔ امام دے
دے هم خام، تاسو هم خام، مخزن هم خام دے

۲۷۴ ۔ مُلایان د سوات همه زکوٰة خوارهٔ دي
په دانش، په دین، په علم خبر نهٔ دي

۲۷۵۔ وے یے دا جواب، دغشی د ناوک دے
سکه ترو یاځه ، میاں نور هم درته ډک دے

۲۷۶- ملا ے وُترله زهٔ هم ورېوان شوم
یک تنها متوجه به ډیر خصمان شوم

۲۷۷- کهٔ غریبي درته ، وُغریبه له سکه
کهٔ خلاصے ورځني نهٔ وي ، باند نکه

۲۷۸- مخاخ وبله کبنینا ستو به قهر
به خبرو مو نیکاره کړهٔ سره زهر

۲۷۹- مَلکان ، شیخان ، همه واړه سره شول
د خیل لوري ننګ یئ واخت مسخره شول

۲۸۰- چه به ما ورته وئیل کوُل د مشکو
ابلهانو به وئیل کوُل له پښکو

۲۸۱- نهٔ یے علم ، نهٔ یئ عقل ، نهٔ یئ پوهه
فضیلت ورځنے لرے به ډیر کروهه

۲۸۲- خوک حکم ، مَنصب حاضر نهٔ وو به میان کښے
چه به حق به باطل پوه شوے به بیان کښے

۲۸۳- ملکان به ننګ د خیل لوري ولاړ وو
عَالمان ، شیخان به نور عضو ولاړ وو

۲۸۴- خُدا ئے د خپلو صادقانو سره مَل وي
ترهرچا د صادقانو کار افضل وي

۲۸۵- شیخ میاں نُور پخپله کښیوت په تقریر کښې
مَا وَدهٔ وَته چوټ ورکړے په تحریر کښې

۲۸۶- کتابت یۓ لا بخوا وهٔ ، راته کښلے
مُشتمل په جهالت وهٔ ، ناپسندے

۲۸۷- نهٔ یۓ خط، نهٔ یۓ اِملا، نهٔ یۓ اِنشا وَه
فضُولي یۓ خپله کښلے بَرملا وَه

۲۸۸- دَ سلوکٔ دَ تصوّف ، واړه لافونه
په اِملا د کاف بځائے ، کښلي قافونه

۲۸۹- هِسکی ثَنا صفت لـه خپله ځانه
تُرهات یۓ په خو ،نکه، په خوشانه

۲۹۰- ما جواب دکتابت وَه ، وَرته کښلے
په هغه جواب مے درے وُه پوهیدلے

۲۹۱- ما دِرے تهٔ لکه کیدړ په خَم کښې شین ئے
خو هُم بیا هغه کیدړ یۓ، کهٔ رنګین ئے

۲۹۲- ښاپیرک غوندِ په شپه په هوا دروے
چه سَبا په تاراجُي هزیمت مُوے

۲۹۳- په خطُونو کښې چه ځان وَماته ستایۓ
ما هُم پیژنے چه څوک یُم؟ داخهٔ وایۓ؟

۲۹۴- خپل صفت دِ یوسفزیه دَته وایه
نهٔ دِ پیژنم چه څهٔ یې، ځان مهٔ ستایه

۲۹۵- چه دا هسې احوال چشمه بدخصال یې
دَ یزید دَ دَر دربان ؟ یا دَ دجال یې

۲۹۶- کهٔ څهٔ شرم یا حیا دَ کېدی خر وَے
بس وَو دا هومره وئیل کهٔ یې جوړ وَے

۲۹۷- دَ عروض دَ علم فن ے وهٔ هُم کښلے
په مخزن ے مغلّط قلم وَر کښلے

۲۹۸- دَ دانش وئیل وَ دهٔ ته لکه بادوو
له هوا یې واړه خپل وئیل په یادوو

۲۹۹- دا یې واړه تر عالم پورے شُهرت کړهٔ
دانسته یې هومره مکر خدیعت کړهٔ

۳۰۰- چه دا هومره دعویٰ نهٔ کړه برپایه
د مخزن به دا خبره شي بے ځایه

۳۰۱- چه خبره د مخزن بے ځایه کیږی
نور نما قدروقیمت به ملک کمیږي

۳۰۲- درست د نفس په هوا، ډک وهٔ سرتر پایه
کنړه وے یې دعویٰ کړله ، بے ځایه

۳۰۳- چه انصاف يې له ازله بد نصيب وي
په دعویٰ کښې راضي کله په تکذيب وي؟

۳۰۴- کار دَ خصم ، خپل خبر وړی حق گوئي ته
دواړه يو ، دی جوړه وي يې حق جوئي ته

۳۰۵- ناحق زن ، بخيل غرض باندې ولاړ وي
حق انصاف يې چرته لرے له زړهٔ لاړ وي

۳۰۶- مگر خدائې يې په سر سازه کړه خبېره
دَ کاذب له خُلے نه وځي وينا غويره

۳۰۷- الغرض چه يې خبره کړه آغازه
دير يې ووئيل دَ خپلے نيا له نمازه

۳۰۸- بيا يې وستايهٔ نيکه په خوخو رنگه
مستمع شهٔ درست عالم ورته بے درنگه

۳۰۹- خُدائې يې وُتړله تربه له انسونه
دا وَينا دده له ترب شوه بيرونه

۳۱۰- مونږه کله وايو دا چه يزيد ښهٔ دے
په مخزن کښې دروېزه ستائيلے نهٔ دے

۳۱۱- بل زمونږ مخزن نهٔ شعر نهٔ بيان دے
بيان شوے نظم نهٔ دے په بل شان دے

۳۱۲ - کۀ يې ګورې درست په شان دَ صحيفو دې
چه راتلې به له آسمانه دَ هغو دې

۳۱۳ - په پښتو کلام موزون دې بيان شوې
په معنیٰ کښې ذِکر ګون دې بيان شوې

۳۱۴ - هغه ځائې چه دَ رښتيا مهتاب ښکاره شي
د کتانو تار اؤ پود، پاره پاره شي

۳۱۵ - دَ رِښتياؤ کرامت، لکه باران دې
دَ دروغو سِحر، ګرد دَ دامان دې

۳۱۶ - چه ددهٔ دَ ځِلې نه، دا خبرې وُهٔ شوې
تا به وې چې په اور پريوتې اوبهٔ شوې

۳۱۷ - پوهېدم زما ستاره ده پرې غالبه
له هيبته يې دا وُواته تر زبه

۳۱۸ - کۀ يې بيا کړه دَ افسون شيوه آغازه
سود يې نهٔ وهٔ، زمانه به شوه پرې سازه

۳۱۹ - مَا دې بس زما مقصود، مرام هم دا دې
مُدعي په دا خبرو، خود ګويا دې

۳۲۰ - دَ يزيد ستايَنه ګورئ په مخزن کښې
هَم مخزن نهٔ دې، د شعر په هيڅ فن کښې

۳۲۱ ـ ړه هُم دا خبره ، وائیم خلقد خامه
خود یُې وُوتیل ، خبره شوه تمامه

۳۲۲ ـ چه هرڅوک به دا خبره خبردار شو
عالمان ، ملکان ، واړه شرمسار شو

۳۲۳ ـ همګي واړه وَما وَته ړونیدار شول
چې کینه ووځې ، دَ ړوغې طلبګار شول

۳۲۴ ـ چه تر میان دَ مومنانو شِدّت بَد وي
بل ستا نور غرض ، تر دا دعوىٰ اَرشدوي

۳۲۵ ـ ته به ننګ دَ پښتون راغې تَر سواته
غون کانړه کړه ، د عالم په کمه ړیاته

۳۲۶ ـ په دعوىٰ به درست عالم سره کَډوَړشي
د ښکر به تولوَل به فساد کړشي

۳۲۷ ـ زما هم به دا مطلب بابندِ نظر وُهٔ
بل مقصود مے وَ نظر ته مختصر وُهٔ

۳۲۸ ـ کني سل پردے به ماکړے دَدهٔ خیرے
بو وینښتهٔ به مے نے پرے نښود به ډیرے

۳۲۹ ـ چه خبرے شوم له نقشه له طرازه
ماےُ هَم به ډیره ، وَورتل خو بیازه

۳۳۰ ـ دَ مغلو دَ ته کښل چه شيخ مياں نُور کړهٔ
ما وِے نور دا هسے مکړو دهٔ منظور کړهٔ

۳۳۱ ـ وے چه نور ے د مغلو نه ، توبه دهٔ
هرچه ننګ دَ پښتانهٔ، چارے هغه دهٔ

۳۳۲ ـ دَ دُنيا خبره نهٔ دَه ، کار دَ دِين دے
ښما زړهٔ د مؤمنانو سره سپين دے

۳۳۳ ـ ښما روغه په رښتيا، دَدهٔ دروغه
دَ مياں نوَر سره ے وَښوه ، هسے روغه

۳۳۴ ـ فضيحت، رسُوا تَر کوره پورے لاړ شهٔ
دَ وګړو اِعتقاد حُنی ولاړ شـهٔ

۳۳۵ ـ چه ے وُلـيدهٔ يو هسے کږ ژَبان وهٔ
چه په مکر، په تزوير لکه شـيطان وهٔ

۳۳۶ ـ په اَغوندُ ے دَ خُدائے په حکم خوار کړهٔ
د شَيطان تو لے ے وَاړه تار په تار کړهٔ

۳۳۷ ـ مَا وِے دے به دَ مخزن غلطی دُور کا
دے لا ناست دے دَ مخزن سره سرور کا

۳۳۸ ـ بيا به خورنګه تعظيم دَ مخزن کاندي
غلطی ئې تړِ وَنـکښه لانـدِ بانـدِ

۳۳۹- مُدعی سره د خدایٔ دپاره بَد یُم
آلوده نهٔ په غرض نهٔ په حسد یُم

۳۴۰- کهٔ په دا طور اور پورے په سوات شي
مګر هاله زما سیله مکافات شي

۳۴۱- بیخ بُنیاد یٔ په جهان کښے دَ وګښودے
په جهان کښے باتو ګله دَ پرینبو دے

۳۴۲- چه دا هسے عالمان هسے شیخان شته
په جهان کښے بیدان ډیر دي لږ نیکان شته

۳۴۳- دَ دُنیا حرام، حلال وبله ونغاړي
هغه واړه مدعي دي چه خدایٔ غواړي

۳۴۴- په دروغ په بے شرمیٔ عُمر تیر کړي
په روش دَ ګدائیٔ یٔ مال ډیر کړي

۳۴۵- دَ هغو په څهٔ طاعت، څهٔ عبادت وي؟
هغه کوم به یٔ دَ عِلم برکت وي؟

۳۴۶- نمونځ، روژه چه دَ ریا دپاره کیږي
له آسمانه په لعنت باندِ ورېږي

۳۴۷- چه دَ خلق قبُولیت یٔ په غرض وي
دَ هغهٔ طاعت، طاعت نهٔ دي، مرض وي

۲۴۸- چې په صِدق ، په اخلاص سره ادا شي
په یوه سجُود ، جنّت باندِ روا شي

۲۴۹- که هزار کاله سجود کړے بے اخلاصه
په دا هسے نمانځهٔ نهٔ وي غاړه خلاصه

۲۵۰- شیخ میاں نوُر چې خجل ورغلے ترکوره
په دا خپل وئیل پښیمان شهٔ ، راشه گوره

۲۵۱- هر ملک سره جواب ددے مکاّر دے
په کښې په قصد زما دَ کاروبار دے

۲۵۲- دَ لښکرو په وَتلو ، اولس ساز شي
بیا دَدهٔ له فِعله ، بل فِعل آغاز شي

۲۵۳- دا ناقِص چې نیش همیش وَهي په کار کښې
گوره څهٔ شي ، دَ لښکر په کاروبار کښې

۲۵۴- یُوسفزیه خو دَ ننګ دَ ناموس نهٔ دی
خوک چې نه کا ، دَ هغه سرې په خُلهٔ دی

۲۵۵- که په خُلهٔ دَ میاں نور نهٔ کا لښکرے
نکه په سراې د لښکرو خاوُرے سرے

# فصل

۳۵۶- همیشه دَ خان په فخر مباهات دے
تَر شیطانه په تزویر په مکر زیات دے

۳۵۷- بَد اَصْله ، بد نسله ، بَد ئې رویۀ دے
له الفاظو ئې روان د بدو بُوئې دے

۳۵۸- اول حال چه دَ ماما په صفت سرشو
بیا له پسه دَ بابا ثنا گستر شو

۳۵۹- دخیل خان په صفت هومره پورته ویشته
چه په مزکه په آسمان کښې ئې ځائې نشته

۳۶۰- دَ خپل پلار نیکهٔ ئې هومره کړه ستائینه
چه زما به ورته وُرَ پیدٔه یَنه

۳۶۱- په تَصنیف دَ مصنّف علم پیدا دے
خوک چه بے علمه تَصنیف کا بے حیا دے

۳۶۲- دَرویزه چه په خندا دَ خپل تصنیف دے
په ناحقه دَ میان نور حُنے تعریف دے

۳۶۳- دَ رندو وَته مشکنړے مرغلرے
دواړه یَو دي کهٔ نزدے کهٔ ترے نه لرے

۳۶۴۔ دریسے یې دَ مخزن صفت اظهار کړهٔ
دَ آسمان دَ صحیفو سره یې شمار کړهٔ

۳۶۵۔ دَ میاں نورَ چه دَ مخزن صفت آغاز کړهٔ
ملایانو به کَدهٔ په وئیل ناز کړهٔ

۳۶۶۔ ملکان دَ یوسفزیو غوا به خرونه
خوَزوَل به یې له نهٔ پوهے سرونه

۳۶۷۔ په تصنیف ورسره مَل ملک عیدل شهٔ
تهٔ به وائې له اوله یو په سل شهٔ

۳۶۸۔ خوار عبدل چه الف بے یې نهٔ دی لوستی
له میاں نوره په تعریف وي سره اختی

۳۶۹۔ چه دَ عامو په تعریف سره بندُ کیږي
په هغه تصنیف به هر سړے پوهیږي

۳۷۰۔ یو صحبت دے کهٔ خوک دے چه مے کتلے
له هغه صحبته هیڅ نهٔ شمه وئیلے

۳۷۱۔ یوسفزیو چه نیولے ملک دَ سوات دے
دا همه دَ درویزه دعا دعوات دے

۳۷۲۔ په سوات دا هسے کفر یې برپا یې کړهٔ
تر عالم پورے یې فخر خپل نما یې کړهٔ

۳۷۳۔ هر چه والئ يا له كفره يا له دينه
يوسفزيه همه واړه تبـــــــلونيه

۳۷۴۔ګاه دعوئ دَ رياست دَ حکومت کا
کله فخر په طاعت په عبادت کا

۳۷۵۔ کله ننه په خلوت کښيني فقير شي
کله سور شي په جرګو کرځي اَمير شي

۳۷۶۔ د مغلو سره پټ ـــــکتابتونه
پښتنو سره پښتون په حکمتونه

۳۷۷۔کله لوئ لوئ کتابونه کړي دَ ورانده
په دعوئ دَ ملايئ بحثونه کانده

۳۷۸۔په دا هسے کار يئ هسے سحر دَم دے
چه مطيع يئ دغه درست واړه عالم دے

۳۷۹۔ يا دا خلق ناديده دے هوسيري
يا دَدهٔ سحر عظيم دے تر ګروهيري

۳۸۰۔کهٔ عسل وی کهٔ حنظل وي هرچه واڅي
په هردم يئ دا ابله وګړے ستائي

۳۸۱۔دَجواب سزا يئ نشته په سوات
مګر ما چه دسوا کړهٔ يه اولسات

۳۸۲- یو عبدل دے بل مانګي چه مدعي دی
خدائے که وار راکړهٔ دا دواړه کشتنی دی

۳۸۳- چه د دوئ ناپوهه په چارو خبردار شوم
له دے خلقه، له دے ملکه نه ویزار شوم

۳۸۴- یوسفزیه چه د ننګ په کار کینے سُست دي
یا په دین کینے خارجي او نادانست دي

۳۸۵- د یزید په لعنت ځهٔ د چا ایستاد دے
خو یابا باندِ ئے حکم د فساد دے

۳۸۶- زهٔ چه بد ورباندِ وایم منافق دے
چه بد دیو ورباندِ وایمُ نالائق دے

۳۸۷- د یزید په لعن خوک رافضي کیږي
چه په ما ئے را تولے کړهٔ خوک پرِ غلیږي

۳۸۸- رافضي به دِ زما وسپي ته نهٔ وے
داخبرے یوسفزو و ښیلے نهٔ وے

۳۸۹- کهٔ مرید د شیخ آدم بنوري دے
په سلوک کینے د دِے کار په بےنوری دے

۳۹۰- په سلوک کینے محقق نهٔ مقلد دے
کان د مکر، کان د کذب، کان د مند دے

۳۹۱- دَ بَدِيو وَفتنو ته غوبړے تخکے
دَ غوبښتنې نياز نذر ته سترګے لګے

۳۹۲- دا فلک په نيک و بد چه جار وانۀ کړي
مريدان ئے حواله واړه په دۀ کړي

۳۹۳- چې باران په خلائق باندِ وَرېږي
وائي واړه دَ مياں جي په دُعا کېږي

۳۹۴- کۀ په خلق قحط اؤ مرګ اَلاَ بَلا شي
وائي، واړه دَ مياں جي په دُعا دا شي

۳۹۵- دے دَ سوات ابله عالم واړه منينه
مياں جيو لره په خير او شر وَرځينه

۳۹۶- خيل مراد دَ مياں جيو نه هميش غواړي
هلکان دَ کونډو رنډو ورته زاړي

۳۹۷- چې په دَر ئے له اَجله نادرست وي
مُريدان وائي چه تل عقيده سُست دي

۳۹۸- دا همه واړه شامت ددۀ بےباک دے
دا خدۀ خلق، خدۀ اولس، خدۀ زيست او ژواک دے

۳۹۹- اُولسُونه خيل کاردنه پخپل راے کا
شيخ مُلا خپل خپل کارونه پخپل ځائے کا

۴۰۰ - عالمان، شیخان خپل کار، خانان خپل کارکا
یوسفزیه تیر وبیر سره روزګار کا

۴۰۱ - دَ شیخانو د دُنیا سره څهٔ کار دے
دَ درویش دَ زړو پل سره څهٔ کار دے

۴۰۲ - هر درویش چه دَ دُنیا هوا لرینه
واړه غلهٔ دي له ځیا اخلي له ځیا خورینه

۴۰۳ - هر درویش چه دَ اولس چه جرګو ګرځي
یو پیرے دے چه دَ هرے لورته ګرځي

۴۰۴ - په هر کار کښې چه یې سُود د دُنیا شینه
کهٔ په خون وي هم فتنه پرے ورکوینه

۴۰۵ - دَ حرص کسیره ددهٔ وي هومره لویه
چه سوات کښې چمچه وُکره ده تویه

۴۰۶ - مُسلمان وَته کهٔ وَ وائي کافر دے
هم هغه ساعت دَ هرځیا پرے محضر دے

۴۰۷ - ما یقین کړهٔ چه سوات کښې مُسلمان دي
چه له حاله یې خبر شوم کافران دي

۴۰۸ - دَ دُنیا دعوی نهٔ کمه شته نهٔ لویه
یو په لسه کار دَ دین دپاره بویه

۴۰۹- په تقریر لکه بوډئ وي فرهادکُشه
په تزویر بدتر تر تروږے ترپړانګ پشه

۴۱۰- وعالم وته پلار قطب، نیکهٔ غوث کا
خپل ځان لاخهٔ آلوده په بل بل لوث کا

۴۱۱- کۀ د تبے په زحمت ګنده بیماروی
هم د بحث وجدل وته تیار وي

۴۱۲- هرخهٔ وائي، چه ددهٔ په ځلهٔ راځینه
هغه واړه دا ابلهه عالم منینه

۴۱۳- کۀ دلیل ئۓ د لعنت او د نفرین وي
بیا د واړه ابلهانو پرے تحسین وي

۴۱۴- په ځلهٔ هومره تلطف راوړي د مکر
چه حیران شي ورته زید او عمر بکر

۴۱۵- نۀ درویش دے، نۀ مُلا دے، نۀ امیر دے
په دا هومره چوَسه کوده د تزویر دے

۴۱۶- لطیفے ئۓ د بیشرمه فضولی دي
دقیقے ئۓ د جهول نامعقولی دي

۴۱۷- عام عالمو وته خاص نقشبندی دي
اما واړهٔ د حرص په نقش بندی دي

۴۱۸ - دے په اصل یا بېنې یا ننګرهارے دے
ځائیده په اشنغر کښې د مغارے دے

۴۱۹- سالها، دَے ګرځیدلے په لاهور کښې
لاهوری مکرونه کل لري په کور کښې

۴۲۰- چه خوځله و جهاز لره دے تللے
تورچړ د اباسین په اوبو ولے

۴۲۱- سپے چه وَلامبی په سین کښې لاکنډشي
یَدبوئې ئې په هر لوري آګنده شي

۴۲۲-که يې ځ وي يا ئې علم تحصیل کړے
یا يې رنځ وي دَ تلقین په کار کښې وړے

۴۲۳- ځرهٔ ئې چوي په ښتیا په پرامندو
ډیر خوښیږی دَ عالم په خوشامندو

۴۲۴-ما چه ولیده دده ناپاک دا دواړه
مسلمان دے یا ځنّار لري په غاړه

۴۲۵-کله دَم وهي له عِلمَه له حِکمته
کله دَم وَهي د سوات له حکومته

۴۲۶-کله دَم وَهي له ځهده چه زاهد یم
ګاه دعوی دَ عبادت کا چه عابد یم

۴۲۷- یو عجیب بوقلمون دَ زمانے دے
لا افزون په ډېرو زړو تر شانے دے

۴۲۸- دَ دُنیا حرص چه ډېر باندِ غالب دے
ورځُ و شپه دَ وړورو مړک وته طالب دے

۴۲۹- ګنهګار چه آویزاند کاندی پرے کښیني
یخپل خان ئے سر وهي خاوُرے پرے پیني

۴۳۰- په توره دَ فن په کار لکه اورنګ دے
یا ئے حکم کړِ پاپا په غورخُنک دے

۴۳۱- سپور غال لري په سوات کښے یوخوکلی
همیشه په مکر دروه ورلره زغلی

۴۳۲- هغه ورځُ کړ په ماتم کښے ئے پیروي
چه خوک نذر نیاز راوړي پرے اخروي

۴۳۳- په دروغ ئے مکر یو یو وَیوهیږي
په وئیلو دَ سیلاب غوندِ بهیږي

۴۳۴- په دا هومره ډېر دروغ کا ورکے کیږي
په وئیلو کښے خیل خان کا لکه کیږي

۴۳۵- دا چه داوایمُ، دا زهٔ نهٔ یم، داے زرهٔ دے
زما زرهٔ دَ چا دَ زرهٔ سره سم نهٔ دے

۴۳۶- چه نښهٔ کړے ، زما زړهٔ دے کله بد دے
چه بد کړے، زما زړهٔ دَ هغے نَه دے

۴۳۷- چه ے هسے ګورځوے په خوشحالئے
دا په دا چه یا خهٔ ګورے یا خهٔ وائے

۴۳۸- الٰهي دَ اَبلهانو خــــــزانه وي
بیکته بخره دَ عاقل دَ دیوانه وي

# فصل

۴۳۹- هغه وخت چه پیر روښان فساد بنیادکړ
پښتنو ورسره تینګ کار دَ ارشاد کړ

۴۴۰- پښتانهٔ په هغه دور پیر پرست وو
خوک مُرید دَ شاه‌عیسٰی خوک سرمست وو

۴۴۱- دَ روښان بخره ورکزي او آفریدی شول
هغه خوښ په رهزنئ په غنیدی شول

۴۴۲- د قاسم په بخره واړه غوریاخیل وو
دنګر پیر وُته د بنون شیتک ایل وو

۴۴۳- ختک واړه بوبکری، پیرمنصوري وو
له بدعته له فساده په بري وو

۴۴۴- په مذهب کښې درست ختک سُني مذهب دے
امّا پیرورته له جهله لکه رَب دے

۴۴۵- کهٔ په دا سبب کافر وي کوندِ وینه
کنه واړه په مذهب کښې سُنيّ دِینه

۴۴۶- یُوسفزي چه همه واړه عیسائي وو
ملکانو سره کړه په رسوائي وو

۴۴۷- قاسمي، شاه‌عیسیٰ ئي سره په جنګ وو
روښنائي پیرمنصُوري سره دا زنګ وو

۴۴۸- دروېزه له یوه لوریه را پیدا شهٔ
په لږ علم به دا ملک کښې لوئے ملا شهٔ

۴۴۹- چه ئے حال دَدِے عالم مُشاهده کړهٔ
خپل کتاب ئے په کاغذ مسوده کړهٔ

۴۵۰- دَ روښان خیرالبیان ئے وَهٔ لیدلے
دَ هغهٔ په مضمون نهٔ وهٔ پوهیدلے

۴۵۱- دهٔ چه خوښے میدان بیاموند سخن کوئے شهٔ
په وئیل کښې چه ئے زړهٔ وهٔ هسے تو ئے شهٔ

۴۵۲- هغه وخت به پښتو کښے عِلم نهٔ وهٔ
دروېزه تر مجتهده وَرته نښهٔ وهٔ

۴۵۳- په مذهب سُنّي مذهب وۀ خارجي شول
دیزید په ستائش کښې مارجي شول

۴۵۴- ملنګانو به یزید ته کړے ښکنځلے
دَرویزه به دَ یزید دُوزے وهلے

۴۵۵- خو دَ نفسُ او د هَوا په کار ئےُ مخ شۀ
ملنګان چه وُرکیدل ددۀ پرے سخ شۀ

۴۵۶- ملنګان ئےُ واړه وُویست له سواته
دَم ئےُ وُواهۀ له کشف و کراماته

۴۵۷- په دا فن ئےُ درستُ سوات عالم مطیع کړۀ
وَ عالم وَته ئےُ خپل کتاب بدیع کړۀ

۴۵۸- هیڅ ئےُ نۀ کاتۀ دَ بدو وَفساد ته
نقش ئےُ کښیناوۀ په مکر خپل اولاد ته

۴۵۹- دَرویزه دَ دروېزيُ وُکړه خوړے
په دا مکر ئےُ حلوا سره لړلے

۴۶۰- چه ئےُ توره وِیښځۀ هُم نۀ وَه دَ وړاندِ
وُخې چې یُوسفزئُ شوے وَرته لاندِ

۴۶۱- یُوسفزیه په دا کار کښې بَدکیشي کړه
چه دَ هر یوۀ کم ذات سره خوښي کړه

۴۶۲- په هغه آوان اکبر بادشاه، بادشاه وُه
واړه خلق دَ بادشاه سره ګمراه وُه

۴۶۳- شاه عیلی ته په ئے وُرے دَ زړو بډرے
وبلوت لره وَرتلے دَ خلقو سُدرے

۴۶۴- مُریدي ئے په کلاه په شجره دَه
کۀ پیري مُریدي دا ده، مسخره دَه

۴۶۵- د ښوښان مُرید حکمه وو په دین کښے
دروېزه ښخنه آغانه کړه په دین کښے

۴۶۶- دَرویزه دَ ناکسینو دِین بربا ئے کړهٔ
خارجي ئے یوسفزیه، ځان ئے ځائے کړهٔ

۴۶۷- عام عالم قرآن حدیث په سترګو وینی
لا په نورو کوخو ګرځي خاؤرے پینی

۴۶۸- عام وکړے په معنی ښکهٔ دواب دے
په دوابو کښے دَ ګډو په حساب دے

۴۶۹- چې یوه ګډه ښوانه شي دَ وَړاندے
هغه نورے ګډے تلهٔ ورپسے کاندے

۴۷۰- حقیقت دَ هر اَبلهه، دَ نادان نۀ دے
چه دَ خدائے بانډ پیژندونے، دهغهٔ دے

۴۷۱۔ خوک په پیر اؤ په مُرشد، خۀ لره وُیاړي
خپل مُراد دِ هم کي له علمه غواړي

۴۷۲۔ شُکر دا چه په دا وخت، عالمان ډېر دي
مُدعیان شیخان کۀ هر څو ترشمار تیر دي

۴۷۳۔ خدائے دِ ما، له مُدعی شیخانو تۀ غوري
تل زما وي عالمان دَ سترګو تورې

۴۷۴۔ هر عالم چه رّبّاني دے، تر ے ځار یږم
نَفسَاني وَته غلیم غوندے ښکاریږم

۴۷۵۔ چه په علم و عمَل جوړ وي ربّاني دے
بے عمَله علم، واړه شیطاني دے

۴۷۶۔ نیم مُلا، بَلا دَ دین اؤ دَ ایمان دے
نیم طِبیب خَطره دَ تن دے، هم دَ ځان دے

۴۷۷۔ مُدعي مُلا کۀ ډیر علم حاصل کا
دے چه علم په دُنیا پلوري، باطل کا

۴۷۸۔ چه په زړۀ کښے یے ذرّه دَ دُنیا عشق دے
دَ درویش درویشي نشته، واړه فِسق دے

۴۷۹۔ یُوسفزیه ئے ماړهُ کړهٔ له سیُده
ملنګان ئے واړهٔ وَشړل له ضِده

۲ کروه یا کوس چه د خلورو نیم روکرو برابر تخمینیږی۔

۳۔ سه نورے هر څه په حیات وماته باد دو (تاک)

۴۔ سه یو خسرانه چه ضرورد واده کار دے (ق ن)

سه بل ئے بوی د نرگس زار ........... (تاک)

۶۔ سه ملوخان، د اسمعیل خان خوئے او خوشحال خان سخر۔

صدرخان، د خوشحال خان خوئے او ملوخان نمسے۔

د گنبت په جنگ کښے خوشحال خان د صدرخان ذکر په دل کوي

سه صدرخان لا چیرے جنگ لید لے نه وو

په دا جنگ ئے نیزه سره کړه په خصام

۸۔ سوات مے داره لکد مال کره سر تر پایه (تاک)

لکد یائے یعنی درست سوات مے وکوت۔

۱۰۔ بلورستان یعنی نننے نورستان چه ورانه په کافرستان یادے شو۔

"ک چ ن" کښے د دے شعرونو مینځ مصرعه دا سے ده سه

سه وهمال وته ئے غر بلورستان دے۔

۱۱۔ سه پرے خاته به د نیکرو په غوغا شی۔ (تاک)

۱۷۔ سه نه پرے لاړ شته نه بل کار نه ئے بل سود شے (تاک)

غله۔ د سوات خلق وریژو ته هم وائی۔

۱۸۔ دوه توره یعنی په لږ څه۔ دوه پیسے

"هغه آوان کښے تر روپئ واجبی د یو مفزی دے۔ پنځه نورے

یا شپږ نورے به د کاله په سر یاد قبیلے په سر سوا نو د قسمت به په

دوی وریشلے" (تاریخ مرصع ص۲۶۳)

۲۰۔ سه بے سرداره بے حاکمه کا وخانه دے (ق ن)

۲۱۔ سه  په هغه هُنر کښې نه دے دا ذکرے۔ (تاک)

۲۳۔ سه  دمیوودے، دُکلونو بوُستان دے  (ن م+ک ج ن)

عه  د میو دے، دګلونو دبستان دے  (ارم)

۲۵۔ سه  د سوات ملک چه درست لانو دے د باغونو  (تاک)

۲۶۔ سه  د سوات ملک چه پکښې ږغے حویلئ دی
په هر کور کښې کلزارونه سهیلئ دی  (تاک)

۲۵ او ۲۶ دواړو شعرونه په "تاک" کښې سره ورانه دی وستودي

۲۷ سه په هر کور کښې..........  (ق ن)

سه په هرلور کښې..........  (تاک)

۲۹۔ هسک یعنی قرعه اندازی، پچه۔ د شیخ ملی د دفتر د نه مکو د ویش طور طریقو ته اشاره ده۔

۳۰۔ سه یوسفزیه دیرچرکین لري ځایونه  (تاک)

۳۱۔ سه کنه په سوات کښې په نظیر دی دروے ماشي  (ن م+ارم)
لکه چه حبیبي صاحب لیکلی دي۔ دغه شان زمونږ سره په قلمي نسخه کښې هم د "نظیر" پځائے "پیخر" دے۔
پیخر۔ د هرڅیز دیرښت او بې پیانی  (حبیبي)
منګنړ۔ کتمل۔
بروړ۔ دا هم د کتمل نه لږ غټ یو آزاری چینجے دے۔

۳۲۔ دا شعر زمونږ سره په قلمي نسخه کښې دا سے دے:۔ سه
پکښې دوه ځله تبزن په بروړے شوم
هر هر ځائے دانے دانے مورے مورے شوم

۳۵۔ بامیزي د یوسفزو یوه خانګه۔ د خوشحال خان ټبر ته هم له دغه

خیل وہ۔ داخیل دتانړے نه ترمیان آدمه پورے آباد دے۔
خواجوي۔ داخیل دتالاشه ترُدر شخیلے آباد دے۔ بقالان
یعنی سبزی فروش۔

۳۶۔ دوصوتیرمو۔ یعنی دوه درے سوه۔
سه کافوکهٔ ئے په شکل شمائل شي (ارم)
شمائل۔ دُشمیله جمع یعنی خویونه۔ عادتونه

۳۷۔ دل کیدل۔ نیم کوب کیدل (حبیبي)
دا شعرنه موفږ سره په قلمی نسخه کښے دا سے دے
سه کنډیل نیکار دسوات په ملک کښے پیداوار دے
په هر نوري تلول د نرکو نیکار دے

۳۸۔ سه دنا اهل دَ توپکو........ (ا م)
۳۹ - ګاوزے۔ دهوسیو یو قسم ، باره سنګا ،
سرزے = غرځنے کیدے۔

کوتاه پائے۔ دَهوسیو یو قسم چه لنډے پښے او تاکی ټاکی
ملا لری۔

۴۲۔ مورنیک۔ دَ مور ےغر۔ سه اول نبهٔ ښکلے محبوبه چه ئے کوم
دویم باز دمهورے دریم نبهٔ اس
دکلیات صـ۸۳۸

پټن۔ په شمال مشرقی سوات (کوهستان په علاقه کښے) دا باسین
په سمه غاړه واقع یو کلے۔ کاشغر ترے شمال مشرق ته واقع دے (کامل)

۵۳ ۔ یعنی په سرونو به ئے خرونو او غوایانو متیانه ے کوئے ۔

۵۴ ۔ داورنګزیب دَ تخت نشینئ په کشمکش کښے خوشحال ختک داراشکوه
[illegible]

خوشحال خان دحریف مقابل بهاکوخان طرفدار پاتے شوے وو۔ او یو وخت ئې د بهاکوخان دَخوشحال لوَدّ پاره شاجهان په واسطه د یوسفزو علاقه چې خپله شاجهان ، خوشحال خان خټک ته په طور د جاګیر ورکړے وه ، محروم کړے وه۔ بیا هرکله چې په سموګړ دارا شکوه د اورنګ زیب او مراد بخش نه ماتے وُکړه او لاهور ته په تیښته کښې کامیاب شو۔ نو خوشحال خان ته یې د یو پیغام په ذریعه دَ هغهٔ علاقے نه د وس تللو اراده ښکاره کړه وے خوشحال خان د هغهٔ سره ونه منله ۔ پسته بیا دارا شکوه دَ بهاکوخان سره د صلاح مشور نه پس ، بهاکوخان دَ اباسین په غاړه په موجود کشتو قبضه وکړه او هم هغه د دارا شکوه په انتظار شو۔ دغه وخت خوشحال خان خپل ترهٔ فیروز خان د بهاکو مقابلے د پاره ولیږلو۔ د یوے سختے مقابلے نه پس بهاکوخان زخمي او د هغهٔ ورسید اخان وُمړ۔

ددغو واقعاتو نه پس بیا دُ امانزو او کمال زو دَ خوشحال خان سره په جنګونو کښې دَ یوسفزو د شکست په نتیجه کښې دره سوه یوسفزي مړهٔ شول ، چې دَ مقتولینو دَ سرونو نه ئې په اټک کله مینار سازکړو۔

(تاریخ مرصع ص ۲۸۹)

پرته له دغو واقعاتو په کال ۱۰۷۷ھ کښے هم د اټک دَ فوجدار کامل بیګ سره د اشرف خان هجری دَ تعاون په نتیجه کښې دَ اباسین په جنوب مشرقی غاړه چې دَ مغلواو پښتنو ترمینځ کوم جنګ شوے دے هلته هم د یوسفزو د شکست په وجه اندازاً دوه زره سړي مړهٔ شوی وو چې حتٰی هم په اباسین کښې ډوب مړهٔ شول او حتٰی ته وندي وُنیول شو۔ کامل بیګ دَ خلورو سوو پښتنو سرونه دَ هغوله تنونه پریکړل ، سل ئې پښتنو رنه وُلیږل او باقي ماتونه ئے کله مینار سازکړو (تاریخ مرصع ص )

دغه شعرکښې د خوشحال خان اشاره تنادید هم دغوځنګونو خوانه وی -
خوشحال خان خټک هغه وخت کښې د قید نه پس د مهابت خان سره وطن
ته راوا پس شو، او مهابت خان چې د یوسفزو د قابو کولو په نیت په
لښکرکوټ (ګړی کپوره یعنی کوټ دولت زی، کوټ اسماعیل زی،
ګړی دولت زی او ګړی اسماعیل زي) د قلعه جوړولو بند بناکوله
نو د کابل ګورنر مهابت خان، خوشحال خان ته ووئیل :-
"هزاری منصب یوسفزیوا با ځي قبوله کړه"
نو خوشحال ورته په جواب کښې ووئیل : —
"پنځوس کاله زه دولت خواه ژم - او یوسفزے
باغی نه یم په حیدل مے ژواهم یوسفزے مے هیښت
بادشاهی کړی - ښنار مے د دوی د کلو سازے کړے"
(تاریخ مرصع ص۲۹۵)

۵۶ - د خوشحال خان خټک لاندنۍ قطعه نه د هغه د قید و بند توله
تاله موده اندازه دوه کاله او څلور میاشتے جوړیږی ـــه

په وسط د څلورمے خوربندی شوم
په رجب د بل کال وختم په ګړ
د ذی القعدے په پنځم له کړے کوزشوم
دوه کالونه پنځه میاشتے شی د تړ
ښه تاریخ د استخلاص را لوره را غے
لاړ په کوزه د سید میر د مور لپړے
۱۰۷۶ھ

ـــه نه اوچه د قصد په کال بندی د اورنګزیب شوم
۱۰۷۴
ناشکیب - بے صبره

۶۱ - دریا خان اپریدے او ایمل خان مومند دَ خوشحال خان خټک د دوُ
نامتو همکارانو نومونه دي. په کال ۱۰۸۳ھ کښې د مومندو د ګنډ اوُ
په کړپه دَ مغلو او پښتنو ترمینځ چه کوم جنګ شوے وو. هغه کښې دَ
پښتنو له خوا کمان دا ایمل خان په لاس وو. هرکله چه د مغلي فوځ سرداران
شجاعت خان، محمد انداز بیګ او مهاراجه جسونت سنګ را تیر وو.
دغه جنګ کښې مغلو ماتې کړې وه. شجاعت خان هلاک شوے وو او
جسونت سنګ په تیښته ځان خلاص کړو. په کړپه دَ مغلو دَ شکست
او ایمل خان دَ فتحې غږ چه دَ دریاخان تر غوږه شو. نو هم په دغه
کال په کوهاټ دَ حملے دَ پاره بے تابه شو. اګر که په کوهاټ دَ یو بے شریکې
حملے دَ پاره دَ خوشحال خان او دریاخان ترمینځه دَ وړاندے نه خط وکتابت
روان وو. ولے پخپل سر دکوهاټ دَ قلا دَ فتحې شوق دَ مقرره وخت
او شریکې حملے نه وړاندے دَ دریاخان په کوهاټ د حملے نتیجه دَ
بده مرغه دَ شکست په شکل را دوخاره شوه. ددغه جلد بازۍ
په نتیجه کښې نصرت دَ هغه وه ورتانار خان و مړ بلکه خکم و نیات
سل تنه آزادي خواه هم مړه شول

۶۲ - ټُنبه. تنظیم، جنګي ډله، مسلح جماعت.

ح سل رحمت دَ مهمندو په ټُنبه شه
چه دَ دیو چار زما سره جالځ ده
(کلیات ص ۸۵۶)

ح د ټیري د مند هنر یو نه ټُنبه وه
په دا کار کښې دَ یوسف په اهتمام
(کلیات ص ۵۵۸)

۶۳- ـــہ خۀ وما وَته خاتُښ خۀ ئے خبردے (ت ـ م)

ـــہ چه وَماته خۀ خاتُښ خۀ ئے خبردے (ا ـ م)

خاتِښ - دَ کوہے او کنډ اؤ شمال مغرب ته دَ مومند ودره -

دَ خیبر په لوری دَ خاتښ په لوری نبۀ نبۀ کاروته دا ایمل خان،

دریاخان دَ لاسه وشول -" (خوشحال خان)

دغه لږ کښے دَ شعر ۱۲ نوټ هم وګورئ -

۶۴ ـــہ دا آسمان چرخ .......... (تاک)

۶۵ ـــہ یکبار ئے .......... (تاک)

۶۸ ـــہ دا چه هسے په هر در بد رنګ ولاړ یم (ق ن)

۷۱ ـــہ تراوله به زۀ لا، په چاربهتر شم (ت م + ک ج ن)

۷۳ ـــہ په تعظیم چه ورته ودرم مخ دراړندے
امراګان به دَ مغلو خوښی کاندے } تاک

۷۷ ـــہ وربوز - دَ مخ راوتلے برخه دَ پوزے سره -

په دربوز خبرے کول - تکبّر (حبیبی)

۷۸ ـــہ په دا ننګ کښے هُوېه، پلار سره په جنګ یم - (تاک)

۸۳ ـــہ ..... دودے پرِ چاورے - (ارم)

ـــہ ..... دے پرے چاورۀ - (ت م)

ـــہ اورنګ زیب بادشاه زره کوک په لاهور راغے
کوره کاندہ په خوک وُران خوک به ودان شی

(خوشحال خان)

اورنګ زیب دَ کال ۱۰۸۵ ھ دَ ربیع الثانی په دویمه ورځ دَ یوخورا

لویے تعداد دَ فوځ، جنګی سامان او توپخانے سره حسن ابدال

ته راغلو او دیره شو - دغه اوان کښے خوشحال خان خټک میدان

(تیراه) کښې وه، چه حسن ابدال ته دَ اورنګ زیب د راتګ نه خبر شو

۸۴ - په غُرزي یعنې په غُصّه جیبي صاحب لیکی :-

" هغه آواز چې دَ غرور او فوبئې په وخت کښې له ستوني را اوزي، یا دَ سرې دَ غور ځنګ حالت -"

۸۶ - ــه کوره خُدشي کار دخدائے دے دستد نهٔ دے (تاک)

ستند - سنجش او تعقل (خبیبي)

۸۷ - ــه یوسفزیه دَ نفاق......... (ت م + ک ج ن)

یوسفزي دَ نفاق ... (ارم)

۸۸ - ــه ....... همه واړه دی - (ارم)

۸۹ - په نبکربه جُمکي سره دُښوری - (تاک)

۹۱ - چوټ - چوټ او تردد، ناداں، حمله (حبیبی)

۹۳ - د کرلانړي نه مقصد دَ خوشحال خان خټک خپل ځان دے -

کرلانړي قبیلے خټک، بنګښ، آفریدی، ورکزی، دلهٔ زاک، اُتمان خیل، شیتک، وزیر، محسود وغیره دي -

خوتره یا چوتره - کرک ضلع کښې یوه سیمه چه ډیر کلی لري -

لوحانړي یا لوانړي - دَ پښتنو یوه قبیله چه دَ مروتو او ګنده پور و ترمینځ پرته دَه -

۹۴ - هوډ یعنې عزم، استقلال، استقامت، ثبات - د غه نه علاوه دَ ضد معنې هم ښندی -

ــه کهٔ مے اروی له هوډه

نهٔ یم مرد کهٔ ترے ترسان شوم

ــه هغه ملا چه مے په هوډ سره لوئے غروهٔ

په ناکام کړه د مغل ته خمه ما

ـــه چه له خپله هوړه نۀ واوښت منصور
که ئے وکړی په سولۍ کړ غ ئے، سور
(خوشحال خان)

ـــه وله نرۀ بدن د یار په کوخه بند کا
نکه مست هاتی په هوډشۀ ځنی نۀ ځی (هجری)

کوړ- کټے، چه د مړدکو یا غوزانو یا اکوړوکولو د لوبے
دکټلو په هسے لوبغاړي پکښے مردکی، غوزان یا اکوړاچوی۔

ـه کله یو سرکله بل سر لکه کوړه
تدبیروند د هلکو مړدکی دی (کلیات خوشحال خان)

۹۵- سیلوے (ت م)

سیلو (ا م)

پیوند- اتفاق، اتحاد، یو والے

سیلوی- طرفداری، حمایت (حبیبی)

۹۶- ـــه د فن کار... ... ... (تاک)

۹۷- آش- خوروا-

شاش- متیازے، وارۀ بول-

۹۸ـــه بیا به هله په چاجوړ د مغل روشی (ت م+ک ج ن)

ـــه بیا به هله په چاجوړ د مغل بوشی (ا م)

۱۰۱- جګدلک- د جلال آباد او کابل ترمینځ د یوے درے او مقام
نوم- هم دلته چه کوم فرد ے د جګدلک په نوم یادیږی-
دا د غلجیو سیمه ده-

ـــه غلجئی په پیوند توره د دهله (ا م)

۱۰۴- په ها هوشرکت لري بلا ئے د وره (تاک)

۱۰۷- ترسنګ یعنی ترسنګ:- دَ دریو میلو مسافت، چه هر میل ئې
دَ څلورو زرو ګزو دي۔

۱۰۹ ـــ چه د ننګ په کار کښې ښې پیدا دا چارې ۔ (تاک)

۱۱۰ ـــ که ئې داروے یوسفزیه په یل شان دي (ت م + ک چ ن)

ـــ که ئې داروے یوسفزیٔ په یل شان دی (ا،م)

۱۱۵- عبدالزوجه :- دَ ښځې بنده ۔

عبدالدرهم:- د دولت غلام

۱۱۹- تنګه :- دَ روپئ تقریباً دریمه برخه ۔

ـــ د تنګو پورونه هر څوک وبله کاندي
بخت هیڅ ورکړے ته دے وبله پور (رحمان بابا)

۱۲۲- مبهوت:- بے وقوف

ـــ چه رلئ ورته ګوهر شئ یا یاقوت دی (ا،م)

مثنیه - دَ مریو دانو ته وائی - دانه ها ئې آبګینه (حبیبی)

۱۲۳- ډمبره :- یوه ونه ده، چه دَ تورمرچ پشان توره میوه
نیسی - په شوملو او چتنئ کښې دَ خوند پیدا کولو
په غرض ېکارولے شی - مصالحه دار خوند لري ۔

ـــ محتسب دِ څنګ لرے لرے ګرځی
مست خوشحال سره کوتک دے دَ ډمبرے

۱۲۵- ګنوار :- ګوار، جټ، بے علمه، بیسواده

۱۲۶ ـــ کور په کور ګوندی ګوندی او میډ نیستی
بے هوده له خانه خوښ بے برکتی (تاک)

۱۲۷ ـــ چه په نړ ئې یاد کړه په هوئې مکره (تاک)

ــــہ چہ پہ "هو" پہ " نہ" پوهیږی پوره مردکتره هغه
"هو" دِ وی " نه " دِ نهٔ وی یاره نهٔ وی "هو" د نهٔ
(کلیات خوشحال خان خټک ص۹۱۳)

۱۲۸ - دا شعر په تاک کښې نشته

۱۲۹ ــــہ پېرنهٔ شائے نورځهٔ نشته بے انکاره (تاک)

۱۳۱ - بغ :- یو وړوکے سپین ډینګ -
شالی زار :- دَ شولو پټه (کښت)

۱۳۳ ــــہ یوسفزیہ په دار کښې بے قسمت وو (ک ج ن + قتم)
ــــہ یوسف زئ په دا کښې بدقسمت وو (ا، م)

۱۳۴ - سیم :- سپین زر
ذهب :- سرهٔ زر

۱۳۵ ــــہ کهٔ یوه پیسه په څهٔ انواع دده کیږي - (قتم + ک ج ن)
ــــہ چه یوه پیسه - ...... - - - - - - (ا، م)

۱۳۶ ــــہ نهٔ دَ یو ښځهٔ لوئۓ هلک ئے تا به فرق دی (ا، م)

۱۳۹ ــــہ د میلمه دته ست برین ر اشه نشته (تاک)

۱۴۰ ــــہ هیڅ خوک نهٔ وی .. (تاک)

. بُردہ :- غلام ، مریئے
متل دے دَ بُردَه نه څهٔ بردہ
داد :- انصاف

ــــہ اصیلان پکښې بنده غوندے خرڅیږی (تاک)

۱۴۲ - دَدان - جمع دَ دَدَ ، دَ بار بر داری ځناور - لکه اُس -
غوائے ، ټټو وغیره -

۱۴۳ - تَوَلّا :- دوستی -

تَبَرَّا :۔ دَ جانه ځان بری کول ۔ دَ سورة توبه درومے آیت ۔

ے تَوَلاَّ که تَبَرَّا ، که د دین ننگ وی
په دا دواړه کښے دَ هر یوه زړه ننګ وی } (ک چ ن)

۱۴۵۔ داه :۔ وینځه ، خدمتګاره ، نوکره

۱۴۹۔ ے درسیپه کانړی یاقوت ورته یوشان دی (ا م)

۱۵۰۔ ے نهٔ مردان غوندِ موخې تیراندازی کا
سپیتوږ یرو سره تول مردکی کا } ق ۔ ن

ے سپینے ږیرے سره تول ۔ ۔ (ت م + ک چ ن)

تهنک :۔ یو پوله قدیم توپک و (۲ نیورک) چه به فوجی تشکیلاتو کښے به تهنګ خانے یو داه وغیرا و مشر افسر درلود ۔ (حبیبی)

مُوخه :۔ نخښه ویشتل ۔

۱۵۱ ۔ ریش وفش :۔ ظاهری دیل دول ، نمائش ۔

ے خود دیو ریش فش ، د ښځو پسول شته (ک چ ن)

ے خودَ دیو ریش و فش د ښځو پسول شته (ق ن)

" پسول " لکه چه حبیبی صاحب لیکی دَ غه تصحیح ده ۔

۱۵۲ ے نه پر حکم وونهٔ چاخهٔ ورکوینه (ا م)

۱۵۴ ے مزیدی دی عنیدی دی نندیدی دی (ا م)

مزیدی :۔ نافرمان ، ملعون ، مردود ، رانده

عنیدی :۔ سرکش ۔ جنګیالی

۱۵۷ ے چه دَ ده وریئے جنازه په کور کښے کښیوزی ۔ (ت م + ا م)

۱۶۰ ے دائے لا څهٔ ځنئے نور تیا حتونه (ق ن)

۱۶۱ـــــہ هومره ملک هومره دولت خو برکت دے
کۀ ئې مال کۀ ئې دولت دے خولت پت دے } ق ن

ـــہ کۀ ئې مال کۀ ئې دولت سخاوت هیڅ (تاک)

۱۶۲ـــــ پالیز:- دَ ختکیو باغ یا پټے

ـــہ بخیند وته ئې پرینږدی اوم ئې دران کا (تاک)

۱۶۳ ـــہ کومه ملک ۔ ۔ (۱۱م)

۱۶۴ـــہ ۔ ۔۔ ۔ ۔ ۔۔ له دیوسم دی ۔ (۱۱م)

۱۶۷ـ ــہ چې خوک ورانی داښه دی هغه نۀ دی
چې خوک ورانی باید دی کله نۀ دی } تاک

۱۶۸ - تکذیب:- دروغ

۱۶۹ ـــہ کۀ په مکرچوک ملا شی۔۔۔ (تاک)

۱۷۰ - په ارم کښې ددے شعرمصرعے وړاندِ وروستو دي ۔

شاه شجاع چې دَ بنګالے په لورروک شوے وه یو شخص د یوسفزیو
په لوری پیدا شۀ ۔ دعوی ئې وکړه چې زۀ شاه شجاع یم ۔ یوسفزی
عالم چې اوس زبردست دے او هیڅ مدان هم دے ـــــ
په بادشاهی ئې قبول کړ ۔ لښکر ئې ورسره وکړ د مغل د اټک
د پرګنوے دَ هرزو په برابرد سیند په غاړه ډیره شول ۔ دا طراف
اوجوانب الوسات دَ پښتنو په دا هنګامه ډیرعالم جمع شۀ ۔ دَ
مغل فوځونه هُم د اټک فوځدار چې کامل بیګ نومیده کۀ ۔ دمراد
قلی ګکهر سره راغلل ۔ دَ سیند په غاړه په مقابله دَ دوی ئې وازول ۔
په سبب دَ بد تد بیری چې دوی کان دَ جهل دی ۔ یو بوریل لودبه شپه
ورځ توسینده یورے نښول ۔ برابره په لښکریا دۀ دَ یورے چې سر
د لښکرو ریورے شۀ بادشاهی فوځونو پرے باندِ متې وکړه ـ

هومره په سیند ډوب شول چې حساب کتاب یې نه دۀ. معامله دشجاع برهم شوه لار د یوسفزیو په سوادکښې کښیناست. یو څو مدت په سوات کښې وفات شهٔ هورے نے کښے یئ.......

.... عالمگیر محمّد آمین خان د لاهور صوبیدار له ډیرو سورو سره دَ یوسفزی په مهم تعیّن کړ. چې داغې یوسفزے عالم په سمه کښے میشته وو. له سمه یې پا سوهٔ. وغرونو ته شهٔ. سری یې ترمیان کړل چې دَ شجاع هډونه په لکه روپئ ولاکړئ.
یوسفزیو جواب ورکړ چې نوم به موبد شی ورے ئے مکړه نورجار ووت لاړ. (تاریخ مرصع ط۲۹۱ ص۲۹۲)

---

بیا له هغه بادشاه دلیرخان او میرجمله دَ محمّد آمیرخان پلار شجاع پسے د بنګالے په لور تعین کړ. بیت :-

تعین په شاه شجاع پسے دلیر وهٔ معظم
وُ ئے یوست له بنګاله ګوره چرته تخکوی دم

په بنګاله چې په شاه شجاع پسے ورغله دریاب ترمیان وه. دلیرخان[۱] له خیله لښکره سره په دریاب ورګډ شهٔ. پورے شهٔ: امّا په دا پورے کیدل کښے ئے ځوئے دا غوستی اسیابه سره ډوب شهٔ. په لښکرد شجاع ورے غے مات ئے کړ. په وخت دَ شکست دائې چه شاه شجاع له څو سورو سره نږدے تیریدهٔ چا دلیرخان ته ووے چه کهٔ حکم کړے[۱] تیوند به ئے ونیو. دهٔ منع کړه چه بادشاهان دی د موږ له نیو سره ئے څه ږدی - شائے ورته کړه وه ورسید. خو شجاع تیرشهٔ نور پسے لاړ ترآشام[۲] تر خټکه[۳] ئے ورساوه - (تاریخ مرصع ط۲۲۶-۲۲۷)

---

۱ - بنګال ۲ - یعنی آسام ۳ - رخنګ یعنی اراکان - شجاع په آخر کښې د اراکان راجا په پناه کښے ورغلو

۱۷۱۔ ـــه دمیلمه دته ئے کترمکرجړک دے (ک چ ن)

ـــه ومیلمه وته ئے کترمکرجړک دے (ا،م)

ـــه ومیلمه وته ئے کترمکرجړک دے (ت،م)

تومن:۔ د سلوکلو ردیهاتو) ضلع

۱۷۳۔ـــه مصلحت دسپینوتوروورته بلیږي (تاک)

۱۷۴۔ـــه ځکه هسے په هرځنک باندړې کا (تاک)

۱۷۵۔ـــه هیڅکاره:۔ نالائق ، بے اعتباره ، ناکاره ۔

۱۷۷۔ـــه شونتهئ:۔ خصوصاً دَ نبترا وعموماً هرهغه قدرتي غوړ لوګے چه دَغرونو وسیدونکي ئې دَ شپے دَ ډیوے په ځائے د رنړا دپاره بکارَوي ۔ ډیرلوګے کوي ۔

دُخان:۔ لوګے ۔

۱۸۰۔ـــه نفرپهٔ شان دَکوته کلي کټو وُچت دے (ق۔ن)

عیدل:۔ مقصد دَ هغه وخت دَ سوات د ملک عیدل نه دے ۔ دده په حقله افضل خان ختک دَ خوشحال خان ختک په حواله د تاریخ مرصع په ص۳۲۷ لیکی ۔

"ملک عبدل اخترے طالے مالره راغلۂ چه مو بړ هم د همزه په سبب ترتاپوړے څخ توري پوُدَ لاسه مونبکر وغیره هیڅ ونهٔ شهٔ ۔"

"ملک عیدل ملک اختروغیرهٔ ملکان دا په تازګئ مالره راغلی دد بعضے فرارشویدی ۔" (تاریخ مرصع ص۳۲۵)

کټ:۔ یعنی غټ

دَ بی بی په کورے دوری کټ کټ کا نری
چه د سوات ۔ زلمي بیلیږی له بانګله (کلیات ص۸۲۸)

۱۸۱- همزه - مطلب حمزه خان دَ خوشحال بابا او بنے او دملوخان
بائیزی خوئے دے

ســه هغه داره دَ همزه دغار پسول کره (۱۴۴)

پسول - کالے ، زیور

۱۸۲- تالے - مطلب ملک طالے دے - دا هم دَ سوات دَ هغه
وخت په مشهورو ملکانو کښے وو

ســه دطالی ملکی تنه آئینه دلا
چه خهره پکښے لیده ئے شی زنګار رنګه
طالے چرګه نر بنځے دے په دیدن کښے
لوئے چار خویل لکه دَ چرګ هو یو کړنګه
(کلیات ص۸۲۴)

او کره - په سپوږمۍ کړو و ریږ وچه ماسته واچولے شی - اوکره
ئے بولی - دَ دویم تالے معنی لو بنے دے

۱۸۳- کاچو دَ سوات دَ خلقو یو لوغون نیکه وو (حبیبی)

ســه نه حمید شته نه کچے شته نه کاچو شته
خدائه نورو سره سر وَ هے له ســنګه
(کلیات ص۸۲۴)

حمید ، کچے (ریا کچے) او کاچو هم دَ یوسفزو ملکان وو چه دا
وخت لکه چه دَ مصرعے نه ښکاری وفات شوی وو - (کامل)
دَ اورنګ زیب بادشاه دَ یوسفزو ملکانو پچقله دیوے بو ښنے
په لړکښے په یوه موقعه خوشحال خان بادشاه ته دائی :-

" بیا بادشاه پوښتنه وکړه چه خو عالم دے په دا سیمه کښے -
خان علین مکان دوے چه یو ولس نه ره کوره یه وی - بادشاه دوے

چې سردارئې بودے ۔ خان ووے نه سرداران ئې ډیر دی، بادشاه ووے کوم کوم ۔ خان ووے، جیبب دے ۔ بهاکو دے ۔ ظریف دے ۔ د سوات د یوسفزیو کچے دے ۔ حمید دے کاچو دے "

(تاریخ مرصع ص۲۷۵)

۱۸۴ ــ ملکی ئې په کرم، نه ده په تورې (رتاک)

۱۸۵ ــ حبطه یعنې ابته، ضائع، ورک

۱۸۶ ــ زغابنت ۔ تاخت، تاراج ۔ حمله، یرغل ۔

۱۸۷ ــ نورے تورے خاورے تورې په کښې وی (ت م + ارم)

۱۸۹ ــ په کم نه بات ئې سره جنګ وی په تنکورو (ت م + ارم)

سکوره ۔ د کودالے په شان یوه سیکه آله چه نه مکه پرے هم کنستلے شی او چمان پرے هم ویستلے شی ۔

حبیبی صاحب د "ت م" او "ارم" د لفظ تنکورو تصحیح په لفظ "تسکورو کوي، چه د پښتو خلق ورته "سکورو" چه واحد ئې "سکوره" ده وائي

۱۹۰ ــ شیخ میاں نور د اخون درویزه یو معتقد ملا وه ۔ خوشحال خان چه په کال ۱۰۸۶ هـ کښے سوات ته تلے ده، نو هغه وخت میاں نور غالباً د هغه وخت د حکومت په اشاره د خوشحال خان د پاره څه د داسے قسمه مشکلات او راولاړو لو په فکر وو ۔ چه هغه د مغلو خلاف لښکر جمع نکړے شی او بخپل مقصد کښے ناکام واپس شی ۔ د میاں نور قبر په سلام پور کښے دے ۔

۱۹۲ ــ سفیه ۔ نادان ۔ ناپوه ۔

فقیه ۔ عالم، دانا ۔ پوه، د علم فقه عالم ۔

۱۹۳ ــ "کنز" یا کنزالدقائق ۔ د حنفي فقهے مشهور کتاب چه شیخ ابوالبرکات عبدالله بن احمد نسفي لیکلے دے ۔

قدوری ۔ داهم د حنفي فقهے یو مشهور کتاب دے چه امام احمد بن محمد القدوری

لیکلي دي ۔

ــه هرحلال حرام په ځان باندې روا کا (تاک)

۱۹۴۔ دا شعر په تاک کښې نشته

۱۹۵۔ ــه نه په مخ د قدردري سپمر شوی (تاک)

۱۹۶۔ ــه کښېنې شرع پریکوي په رشتو تو نو ۔ (تاک)

۱۹۸۔ ــه خپله خوند کړو بله غارت کا (تاک)

۱۹۹۔ ــه په مسجد راځه بېنځه رخته اذان کا (تاک)

۲۰۰۔ ــه د میراث مالونه خوره ...... } (تاک)
نوم په ځان باندې کښېږده ......

۲۰۲۔ ــه نه ئے کښېل زده، نه لوستل زده، تل تکل کا } تم+کج ن
تعویذ دنه ورکوي، په دروغ کښېل کا

ــه نه ئے کښېل زده دی نه لوستل تل تکل کا (ا ر م)

۲۰۳۔ ــه په نا روغ ئے خوبنی لا زیاته تر روغ } ت م + ارم
طشت تعویذ دعا هیکل کښې په دروغ

هیکل۔ دمتي تعویذ، حمائل،

۲۰۵۔ ــه که په درکړه کښې څه درنګ څه خو تعطیل وي (تاک)

۲۰۶۔ ــه چه رنځور له رنځه خلاص شي را ته بیا کا } تم + ارم
نور به بیا د چا تعویذ د ما بلا کا

ــه نور به بیا د ما تعویذ، د چا بلا کا ؟ (ک ج ن)

۲۰۸۔ ــه دا چه زر هسې نا سازې کا آغازې ۔ (ت م + ارم)

ــه دا چه زر هسې نا سازې کا آغازې (ک ج ن)

۲۱۱۔ ــه چه څه ترس له خدایه نه کاندی غلول کا (ت م+ک ج ن)

ــه که ئے ترس له خدایه نه کاندې غلول کا (ارم)

۲۱۲۔ ــه چه ملا د میاں نور په حکم دروغي (تاک)

۲۱۳۔ ــه میاں نور کړه ۔ (تاک)

۲۱۴- یاوه یعنی بے هوده

۲۱۵- تزویر- مکر- فریب ، حیله -

۲۱۶- ــه چې په ماپاندِ ئے جورکړوخه تهمت (ت م)

ــه چې ماپاندِ ئے جورکړهٔ تهمت (ا ا م)

ــه .... جورکړ تهمت (اک ج ن)

۲۱۹- تکفیر:- کافرومَنل -

۲۲۰- قلماق - پهره دار- مرئیے ، غلام ، د ترکا نوقبیله -

بخوابه د قلماقو ترکانو تخرځنی بکلی نهلی د مرئیٔ په توګه

پلورل کیدل - (حبیبی)

۲۲۳- ــه د بیدذات مکر په علم کښے لا پید شی
حبشی چې په څ حال کښیږ دی لا پید شی (تاک)

۲۲۴- ــه د سوات خلق یے له کل علمه مور کړے (ت م+ک ج ن)

د سوات خلق یے کل عالم موړ کړے (ا ا م)

۲۲۵- مجهول- نامعلوم ، هغه فعل چه فاعل ئے معلوم نه وي -

۲۲۶ ــه دا احوال به په بل فصل کښے اظهار شی (ت م+ک ج ن)

ــه دا احوال به په بل فصل کښے آشکار شی (ا ا م)

۲۲۸- ــه چې لعنت به په یزید پاندے دائی نه (تاک)

" ادس دِ هیڅوک پر یزید لعنت نهٔ وائی ځکه له ګمراهانو

چې په رفض کښے غره دینه بیجده -" (مخزن ص)

۲۲۹- " دریٔ وائی دے د حسینؓ په مرګ راضی نهٔ- دے کافر شهٔ دا

خبره بیهوده - دلے صحیح خبر دغه دے چې یزید اهل قبله و ومصلی

وو " (مخزن ص)

۲۳۰- " دولس امراء ئے پر قصاص کړهٔ ، د امیر حسینؓ په د نارامنی وو-

(مخزن ص)

۲۳۲ - غه دَ هغه ضمیرِ اشاري مخفف تشکل دے - دلته مراد اخون درویزه
نهٔ دے بلکه یو بل مُلا دے چه دَ مخزن کاتب به وو - ځکه چه پلغه
کال (۱۰۸۶ھ) درویزه ژوندے نه وو - اوُ نهٔ دَ درویزه په مخزن
اسلام کښے دغسے تحریفات شته - ښائی چه دغه نسخه کښے به یو بیل
متعصب سړي یا دغه جاهل کاتب لاس وهلے وی - اوَ ځه تا
مشروع خبرے به ئے پرِ اضافه کړے وي - چه خوشحال خان دُ ئے
غندلے دي - (حبیبی)

۲۳۴ - سه دا مذکوره واره سوات کښے مشهور شهٔ (ق م + ا م)
سه دا مذکوره واره سواتو .......... (ک چ ن)

۲۳۷ - سه ګډه ئے داره به دا ویره دا آشول کړهٔ (ق م + ک چ ن)
سه ګډه ئے واره به دا ویره دا ګج کول کړهٔ (ا م)

۲۳۸ - سه میان نور دے (ق ا ک)

۲۴۲ - سه چا به دا دی چه توبه دَه دَ ویشتو دے (ق ا ک)

۲۴۳ - سه چه ئے زړه ځے خبرے به ما وایه (ق ا ک)

۲۴۷ - د اخون درویزه دکتاب نوم "مخزن الاسلام" دے - د
نظامی ګنجوی فارسی مثنوی "مخزن الاسرار" نومیږی - کیدے شي
چه خوشحال خان خټک هم "مخزن الاسلام" یاد کړے وي - اوُ
وروستو بیا دَ کوم کاتب د غلطئ په وجه "مخزن الاسرار" لیکلے شوے وي -

۲۴۹ - نامربوطه یعني بے ربطه ، بے علاقے ، بے تعلقه -

۲۵۱ - بوصیري :- مصر کښے دَ بوصیر کلی وُ سید ونکے وو - خپل نوم ئے
شرف الدّین محمد بن سعید وو - دَ عربئ د نعتیه قصیده بُرده
مصنف وُو - په کال ۶۱۲ھ کښے پیدا اوُ په کال ۱۲۹۶ء کښے
وفات شو -

سه عربي ئے تر پیښتو مضحک رادری۔ (تاک)

۲۵۳ ۔ جلال الدّین حمزہ آذری چه په کال ۱۳۶۲ھ کښے د ۸۲ کلونو په عمر وفات شو۔ دَ خراسان دسید ونکے او دَ ډیرو کتابونو مصنف وو۔ دَ یو څونو مونه ئے دادي۔ لکه

بهمن نامه، طغرائے همایون، ثمرات او د دیرشو زرو اشعارو یو دیوان

۲۵۴۔ ناصر خسرو بلخي چه حکیم او ښخپل وخت د فارسي مشهور شاعر وو۔ په بدخشان کښے ئے مزار دے۔ زمانه ئے د کال ۳۹۴ھ نه تر کال ۴۸۱ھ یاد یږي۔ اخون درویزه د ناصر خسرو بلخي دَ یوے قصیدے څه شعرونه په "مخزن الاسلام" کښے را ترجمه کړیدي۔

۲۵۵۔ سه درته څه وایم چه څۀ دی دَ پستو دی (تاک)

۲۵۶۔ مهابات (اېم)

مباهات۔ یعنی فخر، نیاز، ویاړ

سه په دا هسے شان کتاب ئے مباهات کړه
د جامي تر هفت اورنگ ئے درته زیات کړه
} ق ن

جامي دَ مولانا عبدالرّحمٰن تخلّص دے۔ جامي دَ نظام الدّین دشتي ځوئے وو چه د کال ۸۱۷ھ د شعبان په میاشت کښے پیدا او د کال ۸۹۸ھ دَ محرم په میاشت کښے دَ مدینے منورے په لار دَ سفر په دوران کښے وفات شو۔ پنځه څلویښت کتابونه ئے لیکلي دي۔ "هفت اورنګ" ئے دا اووه کتابونه دي۔

(۱) سلسلة الذهب (۲) سلامان و ابسال (۳) تحفة الاحرار
(۴) سبحة الابرار (۵) یوسف زلیخا (۶) لیلی مجنون۔
(۷) خردنامه سکندری۔

دغه نه علاوه شرح ملا بهارستان، شواهد او لوائح وغیره هم
دَ جامي مشهور کتابونه دي. جامي يو مشهور او دفارسي لوئے شاعر
عالم او صوفي تیر شوے دے. د هرات (افغانستان) د ولايت په
جام نوے کلي کښې پيدا شو. دَ ځنو په خيال دَ جام د ساهے په
خرجرومن کلي کښې پيدا شوے وۀ.

۲۵۷ ـ ـــه خاص په خاص او عام په عام وئیل خوښیږي (ق ـ ک)

۲۶۰ ـ ـــه ګلم ـــ ئے واره په داويرا و په دا بول کړۀ (ق ـ ن)
ګجے او ګول يعنی نادان ـ

یاد ګیرنه :ـ دغه لړ کښې ۲۴۷ نمبر شعر هم وګورئ
ـــه کۀ په بوهه کښې دانا د زمانے وی
د نه پرۀ غم ئے ترهلکو ګجو ګول کا

ـــه زه لاهسے ګجو ګول نادیدۀ نه یم
چه لاله به پیه وُم ستا له جماله
(کلیات خوشحال خان)

۲۶۱ ـ شعر ۲۶۱ او ۲۶۲ دا دواړه په (ق ـ ک) کښې نشته ـ دَ مغار ـ سوات
کښې د نائیکخیلو یوسفزوَ یو کلي نوم دے ـ

ـــه چه احوال دَ یوسفزیو را معلوم شو
لواغر و مانته ښۀ ووُ نه دَ مغار } (کلیات ص ۵۲۷)

پیبول :ـ موجوده سوات کښې په دغه نوم کوم کلے ما پیدا نه کړے شو ـ
البته دکال ۱۸۶۸ء سوات چه جغرافیائي نقشے دَ نشتي
سوات نه مختلفه وه ـ کیدیشي دا "پیپل" وی ـ
پیپل کلے مردان ضلع کښې دکوی برمول او ملټے کلیو ترمینځه نه هم
آباد دے ـ

په شعر ۲۶۸ کښې چه دکوم رود ذکر دے۔ شاید دا اشاره
هغه رود ته وي چه دباز درے په رود یاد دے اود باز درو
او شیرخانئ نه تیریږي راتیریږي۔
د څوارلسمے صدئ عیسوي په شروع کښے څه وخت چه یوسفزي د
ملک احمد په مشرئ دالغ بیګ ثاني له ظلمه پېښور ته ورسیدل
او دلهٔ زا کو د دوواوے (دوآبه) علاقه وروُ بخښله۔ نو دغه
وخت په اشنغر د ګیکا نانو قبضه وه۔ دګیکانان د پکهل رعیت
وو او پکهل هغه وخت د سوات بادشاه وُه۔ یعني هغه وخت د
اشنغر نه بره ګیکا رئ، سري بالول، شیرخانئ، مورے غر عن
د ملاکنډ تر څوکے سوات کښے شو۔ ( تواریخ حافظ رحمتخان )

۲۶۲ ـــ اوس په درست اولس کښے ښهٔ ملک عبدل دے
کڅوڅ زر کا خدائے څهره چه مړک ید زمکه
(کلیات ص ۸۲۴)

۲۶۴ ـــ فراغت دَ توت ترسیوره لاندے نماست وم (ت م + ک ج ن)
ـــ " " " " " نامست وم ( ا م )

۲۶۶ - تو۔ موجوده پښتو کښے دَ "نو" معنیٰ بندي۔

۲۶۷ - تلاتوب - بیقراري، بے آرامي۔

۲۷۳ - مجتهد - چه د فقهے مئلے راوُکاږي۔

۲۷۲ - ـــ یک تنها مواجهه.......... (ت ا ک)
خصمان - دَ خصم جمع، دَ یوبل مخالف

۲۷۷ - ـــ چه غریږي دَرته وغریږه له سګه ( ا م )
ـــ چه غریږي درته وغریږي له سګه (ک ج ن)

۲۷۸ - ـــ په خبرو موښکاره کړو سره زهر (ت ا ک)

۲۷۹- ملکان شیخان علمان دارہ سرہ شول (تاک

۲۸۰- پیشکے - ذکہ ویزو تیچ -

۲۸۳ - حبیبی صاحب ددے شعر دکیہ مصرعہ دا سے سمہ کړیدہ -

ــــہ عالمان ، شیخان پہ پور غصو ولاړ وو -

یعنی عالمان او شیخان لہ تیرہ ډک ولاړ وو - بنائی چہ ددھم

ولاړ دَ واوُ پہ کسرہ وی ، دَ قصد او آھنگ پہ معنیٰ -

۲۸۵ - چوپ :- حملہ ، یورش - چوپ ورکول یعنی حملہ یرکول ، چہ

خوشحال ځنه پہ خپلو خطو بریان نو رحیلے او اعتراضونہ کړی دو

(حبیبی)

۲۸۷ ــــہ نفوس ئے خپلہ کښلی پہ ملا ... (تاک)

۲۸۸ ........ دارہ قانونہ (تاک)

۲۸۹ - ترھات یعنی لافے ، باړے ، بے معنی خبرے ، خوشے خبرے

طرھات - (ا،م)

۲۹۰- پہ ھغہ جواب دے د رست وہ پوھید لے (تاک)

۲۹۲ - ھزیمت یعنی شکست -

۲۹۶ - کیدی خر - یعنی تیپوب تہ منسوب ، نامرد ، بے غیرتہ

۲۹۷ ــــہ پہ مخزن د مغلظ قسم ورکښلے (ن م)

ــــہ پہ مخزن د مغلظ قسم وو کښلے (ا،م)

ــــہ پہ مخزن دَ مغلظ .......... (ک ج ن)

۲۹۹- خدیعت - یعنی فریب ، چل ول ، دوکہ

۳۰۲- ــــہ درست دَ نفس پہ ھوا غرق دہ سر تر پایہ

کښې وے بہ دعویٰ کړہ دہ بے ځایہ

۳۰۳ - تکذیب - یعنی پہ دروغہ -

۳۰۴۔۔ کار د خصم دَ خپل خپسرۀ حق گوئی ته
دواړه بودی جوړ دی دَ حق سوئی ته } ت م

۔۔ کار د خصم دَ خپل خپسرۀ حق گوتی ته (ا م)
۔۔ دواړه بو، دی جوړ وی دَ حق وسوی ته (ک ج ن)

۳۰۵۔۔ حق انصاف حساب ئے واړه له زړۀ لاړ دی (ت م+ک ج ن)
۔۔ حق انصاف حساب ئے واړۀ له زړۀ ولاړ دی (ا م)

۳۰۸ - مستمع - اوریدونکے

۳۱۳۔۔ یو پښتو کلام موزون دے بیان شوے
(تاک)

۳۱۴۔ کتان - یو قسم رخت، ددے پخقله دا خیال وو چې د سپوږمۍ
په رڼا پرک پرک چوی۔

۳۱۵۔۔ دَ دی وعو سحر دورے دَ بیابان دے (تاک)

۳۱۶۔۔ ته به واخلې په هر ځای تو ئے اوبۀ شوے (تاک)

۳۱۸۔۔ کنڈئے بیرته وا نسون ته کړه آغاز (ق ن)

۳۱۹۔۔ مدعی په دا خبرو خود آگاه دے (تاک)

۳۲۰۔۔ هم مخزن ندے دَ شعر په هر فن کښے (تاک)
وکورئ "مخزن" ص۵

۳۲۲۔۔ چې کښنه وځی د، وے طلبگار شوو (تاک)

۳۲۳ - د "تاک" په نسخو کښے ددے شعر دویم مصرعه د شعر ۳۲۲ سره
د دویم مصرع په حیث بکار ئے شویده، هرکله چې دَ شعر ۳۲۲ دویمه
مصرعه او د دغه لیعنی شعر ۳۲۳ وړمبئ مصرعه په ذکر شوو نسخو کښے بیخی نشته
په "تاک" کښے دا شعر په ۳۱۸ نمبر دے۔

۳۲۸۔۔ کمزه دا بیدے به ماکړے واړه خیرے (تاک)

۳۲۹ - طراز یعني آرائش -

ے ............ له نقشه له ترازه (۱۸۹)

پـه بیره بیاز ورزل = راخئ کول او ذ غ چم ورسره کول (حبیبي)

۳۳۲ - په تربیت کښے د میاں نورخیره تامیږي - په دے بیت کښے د
خوشحال خان خپله خبره ده - (حبیبي)

ے دُنیا خبره نه ده کار ددین ده
دما زړهٔ د مؤمنانو سره سپین ده } (تاک)

۳۳۴ - نضیحت - رسوائي ، ذلت ، خواري -

۳۳۶ - اَعوذ بالله مِنَ الشیطان الرَّجیم د یعني زهٔ دَ شیطان مردود
نه پناه غواړم - دا کلمات د شیطان دَ شر لرے کولو دپاره لوستے
شي - ے

بس اعوذ از بهر چه باشد؟ چو سگ
گشته باشد از ترفعٔ تیز تگ (مولانا رومي)

۳۳۹ - ے آلوده نه په غرض اوذ په حدیم (۱۸۱)

۳۴۰ - ے کهٔ په دا تونه اور بورے په سوات شي - (ق ن)

ے کهٔ په دا طور اند بورے په درست سوات شي (تاک)

میله - طرفداري ، حمایت ، مرسته (حبیبي)

۳۵۳ - نیش - لشه

۳۵۵ - دغه شعرنه پس دَ درے اتیاؤ شعرونو یو مکمل فصل
په "تاک" کښے نشته

۳۵۶ - تزویر - مکر ، فریب ، حیله

۳۶۰ - یتم - اینه - ځمکر -

۳۶۳ ـ ـــه په بازار دَ نابینا دَ جوهریانو
لعل یاقوت او کنتی لال دریواړه یو دي (رحمٰن بابا)

۳۷۱ ـ دعوات ـ دَ دعوت جمع ، دعاګانے ـ

۳۷۹ ـ کرو صیدل ـ ویریدل ، خوفزده کیدل

۳۸۰ ـ حنظل ـ مرغونے

ـــه ستا دَ خُلے چینه حنظل ده هم عسل ده
وهرچاته نه تونوته دَ عسل ــکـا
(دخوشحال خان)

۳۸۲ ـ وګوری شعر ۲۶۲ او ۲۶۳

۳۸۴ ـ نادانت ـ ناپوهه

۳۸۹ ـ شیخ آدم بنوری ـ دَ ده پحقله افضل خان خټک د تاریخ مرصع په منځ ۵۵ لیکی ـ

نقل دے چه پلار د حضرت ایشان چه میان اسمٰعیل نومیده په
اصل مشوانړے وه ، مشوانړی ځان ته سیدان وائي ـ نوکر دَ شاه جهان
نودی وه ...هرکاه چه حضرت پیدا شهٔ چه قابل
د مکتب شهٔ پلار په استاد د سپارهٔ ـ تعلیم ئے دَ علم ظاهري
ورته کاوه ........... یو مدت کښے علم ظاهري خوچه
نصیب وهٔ ورنے کړه ...................
شهرت ئے دَ قابلیت و خان جهان ته ورسید ـ خان جهان
ئے پلار ته ووے چه فرزند دِ تا قابل او رشید آه و میده شی ـ
رائے وله چه نوکرے کړو................
حضرت ایشان پلار ورو ست ـ نوکر د خان جهان کوی کړ.....
..... نقل دے چه یوه ورځ ئے تاخت په ګوارو کړے وه ـ

بت خانه ئې وړانه کړه - بت ئې مات کړو - بت پرست ئې مړه
کړو ............ اَس ئې مخ په ځنګل روان شه - په ځنګل
کښې یو سپین ږیرے ناست وه ............... ملاقات یې
د هغه بزرګ سره وشۀ ............ هٰذالقیاس دا زړګ
د خوارلسو واړو طریقوا ښاد د حضرت ایشان له اکمل کاملانو
واخست .......... خلور لکه مریدان ئې وُو - په سبب
د یو شهرت شاه جهان بادشاه په هراس شۀ - سعد الله خان
او مولانا عبد الحکیم ئې ور واستول چې د ماله مکه ووځه -
حضرت مسجد ته ورغے کښیناست چې دا یم دَ بادشاه د مکه
او وتم - نو ربه زیارت د مکے معظمہ او مدینے منورے روان شه چې
په دکن ورغے - اورنګزیب په زیارت دَحضرت ایشان ورغے -
دُعا ئې ورته دکړه چې ورځه بادشاه شے ......... پس له هغه
په لږ مدت کښې په مدینه منوره کښې وفات شۀ

۴۰۵ - سلوک - دَ صوفیاوُ په اصطلاح کښې د الله تعالیٰ قربت
غوښتل -

مقلّد :- تقلید کوُنکے، بغیر دَ څۀ دلیله په خبره عمل کوُونکے، پیرو -

۴۰۶ - محضر - فیصله ، د قاضی تحریر -

۴۰۹ - ترورے - لومبړه - روباه -
پړانګ پښ - پړانګ پیش - غټ پیش یا پیشے

۴۱۰ - قطب - هغه ولی چې دَ خدائے تعالیٰ دَ طرفه وَرته دکوم
ملک انتظام ورپښاره شوے وي -
غوث -
لوث - آلائش ، آلودګی -

۴۱۶ - دَ قیقے - باریکیٔ ، نقطے

جهول - جاهل ، احمق ، ډیناپوهه

۴۲۱ - افګنده - عاجز ، معذور ، مجازاً خوَږه

۴۲۴ - زِنّار - هغه زنځیر چه هندوان ئے پغاړه کوي -

۴۲۷ - بوقلمون - یوړوَمی رخت چه په ساعت په ساعت رنګونه بدلوي - قسما قِسم ، رنګا رنګ -

شانه - ږمنځ

۴۲۹ - پیتي - ټُولی ، لوئی

۴۳۱ - درمَنه - مکر ، فریب ، دوکه

سیورغال :- مدد ، معاش - انعام - هغه عطیه دَ ځمکے چه په بدل کښے ئے د فوځی خدمت شرط اوُ قید نهٔ وي (کامل)

سه داحمه زما دَ تورے صدقه ده

پښتانهٔ چه پرګنے خوری سیورغال

(کلیات ص۵۲۵)

۴۳۴ - شاه عیسی - میاں عیسی د سند دیکرله سادا تو سره یوځاۓ ووُ - چه په اټک کښے اوسیدهٔ اوُ ددهٔ یادونه دَ اخون درویزه په کتابونو کښے شویدی (۹۸۰ هـ حدود) وګوریٔ

«تذکرة الابرار والاشرار» ۲۶۱ - ۲۹۷) یو بل سید عیسی هم پیژنو چه دَ عبد الوهاب اخون پنجو مرید ووَ ، بنائیٔ چه دغه دواړه یو سړے وي (حبیبی)

افضل خان خټک هم په تاریخ مرصع کښے دَ اَخون درویزهٔ په حواله د یو میاں عیسی ذکر په دے ډول کوي :-

وونقل دے له اخون درویزهٔ چه اکبر بادشاه له هندوستانه

وکشمیرته روان شهٔ - د یوسفزی ملاحظه ئې په خاطرکېږ ده
په داوخت کښې میان عیسیٰ وسردارانوته د یوسفزیو د کبله چې
که صراح کتاب د ملا شاه خانی سواتی له کتاب خانې مالوه را
واستوئ دا ملک به ستا سو داکبر بادشاه د خلاص کرم" (ص۲۴)
سرمست :- یو ملا زمند د پښتو سلوک الغزات مؤلف او شاعر
داخون خالاک توغی مرید او شاگرد پیژنو چې ۹۵۰
په شااو خوا کښې به ئې ژوکړے وي او تر خوشحال لږ څه
د مخه ژوندے وهٔ - بنائي چې دلته د غه سرمست مراد وي
روکوری پښتانه شعراء - ا (۷۷) (حبیبی)

۱۴۴ - عنیډی :- سرکشی، جنگجوئی

۲۴۴ - بنائی چې مراد شیخ قاسم بن شیخ قدم متی زے خلیل غوریاخیل وی
(۹۵۶ - ۱۰۱۴ هـ) چې د پېښور په ګډ واده کښې د قادری طریقې مرشد
وهٔ او د "تذکرة الاولیاء" افغان مؤلف دے -
(تذکرة الابرار ۱۵۵) یا به مراد اخون قاسم عبدالله یا پیټ خیل
شنواری حوئې وی چې د پښتو فواید الشریعت مؤلف او داخون درویزه
دادبي مکتب غړے دے او د خوشحال خان لږ څه د مخه وهٔ -
(حبیبی)

ډنګریږ :- د کوهاټ ضلعې یا ندوه داؤد شاه سره ئې مزار دے
ښیتک - بنوڅی
ایل - مطیع، فرمانبردار

۳۴۴ - بونکری :- ابوبکر یا ابابکر ولد شاه اسمٰعیل حسینی سید
دے - دوه ښځې ئې په نکاح وے، چې یوه بي بي حلیمه نومیده او
بله نورجان پیرسباک د بي بي حلیمې له خیته نه وهٔ - هر کله چې

سید عمر او منصور علی دَ نورجان له نسه زیګیدلی وو۔

منصوری۔ دَ ابابکر ولد شاه اسمٰعیل زوے منصور علی مریدان۔

سه له بدعته له فساده به دوري وو۔ (تاک)

۴۴۶ ۔ سه یوسفزیه همه واړه عیسائی وو
ملکانو سره ګډ به سوالی وو (تاک)

عیسائی:۔ یعنی دَ شاه عیسٰی مریدان۔

۴۵۰ ۔ سه دَ رونبات خیرالبیان نے وه لیدلے
هغه هم مجهول بیان دَه ناپسند لے (تاک)

۴۵۳ ۔ سه خارجي۔ دَ رافضیانو خلاف یوه فرقه چه اصحاب ثلثهؓ خوښه کنړي وه حضرت علیؓ نه شه نه ګوري او په حضرت علیؓ یے خروج کړے وه۔ ځکه ورته خوارج وائي۔ یو سړے یے خارجي ملے شي۔

خارجي:۔ یعنی پیریانو بنیادی نیکه۔ لکه دَ انسانانو بابا آدم علیه السّلام۔

۴۵۴ ۔ سه درویزه به دَ یزید دوزے بللے (تاک)

۴۵۵ ۔ سه ملنګان چه وه کیدل په دهٔ به سخ شهٔ (تاک)

سخ۔ خوشحالی

۴۵۶ ۔ سه ملنګان ئے واړه دیستل له سواته (تاک)

۴۵۷ ۔ بدیع۔ نادر، نوے، عجیب

۴۶۰ ۔ سه .......... شوے تر لاندے (تاک)

۴۶۲ ۔ دغه شعر کښے د اکبر بادشاه دین الٰهی ته اشاره ده۔

۴۶۳ ۔ بدره۔ کڅوره، همیانئ۔

بلوتهٔ:۔ د ډیره اسمٰعیل خان ضلعے او تحصیل یو کلے دے۔

خوشحاله عیسٰی دَ یوسفزو پیر وو۔ او که دَ نظر لاندے

بلوڅ نه هم یاد شوے بلوڅ مراد وي نو د مصرعے تعلق به
شاه عیسی سره نه وي ـ (کامل مرحوم)

۴۶۵ ـ درویشان مرید به وران شه په یقین کښے
سل فتنے به یے پیدا کړلے په دین کښے } ت م

سه درویشان مرید به وران شو په یقین کښے (ک چ ن)

۴۶۶ ـ سه درویزه د ناکشیشو دین برباد کړو
خارجي ئے یوسفزیه ځایئے په ځایئے کړو } تاک

۴۶۸ ـ دواب ـ د دابه جمع ، د سورلئ او باربرد اری ځناور لکه
اس ، غوائے ، اوبښ وغیره ـ

۴۷۲ ـ سه مدعی شیخان که هم تر شماره تیر دی (تاک)

۴۷۶ ـ . نیم حکیم خطرهٔ جان د نیم حکیم خطرهٔ ایمان

۴۷۹ سه یوسفزیه ئے ساړهٔ کړهٔ له سیّده
ملنګان یے وشړل واړه له ضده

دلته له سیّده مراد هغه شاه عیسی دے چه دمخه ئے نوم
په ۴۴۰ ـ ۴۴۷ بیتو کښے یاد شو ـ (حبیبی)

# کتابیات


(۱) تاریخ مرصع : افضل خان خټک
مقابله، تصحیح او نوټونه د کامل مومند
(۲) خوشحال خان خټک (اردو) از کامل مومند
(۳) تذکرة الابرار والاشرار۔ اخون درویزهؒ
(۴) مخزن: ۔ اخون درویزهؒ ۔ مقدمه د سیّد تقویم الحق کاکاخیل
(۵) ارمغان خوشحال: از میاں سید رسول رساؔ
(۶) سوات نامه: د پوهاند عبدالحی حبیبیؔ سریزے او خرکندولو کابل چاپ
(۷) پښتو خزانه: محمّد هوتک
(۸) پیر سباق : از عقاب خټک
(۹) د افغانستان پخوانے تاریخ : (دوهم جلد) احمد علی کهزاد
(۱۰) پټهان: ۔ اولف کیرو
(۱۱) پښتانهٔ د تاریخ په رڼا کښے : ظفر کاکاخیل
(۱۲) تاریخ یوسفزے : الله بخش یوسفی
(۱۳) تواریخ حافظ رحمت خانی
(۱۴) د سوات نلدے قلمی نسخه ۔ پښتو اکیډمی